ورځپانه
# هیواد

مؤسس: عبدالرووف بېنوا
د تاسیس کال ۱۳۲۸ لمریز
پنجشنبه د رمضان المبارک ۶ مه ۱٤٤٦ ق کال، د کب ۱٦ مه ۱٤۰۳ ل کال، د مارچ ٦ مه ۲۰۲۵ م کال، خصوصي ګڼه ۵٦۱ مه، پرله پسې ګڼه ٦۵۱ مه، اتمه دوره

امارت اسلامی افغانستان
وزارت ارشاد، حج و اوقاف
اوقات افطار و سحری ولایت کابل

| | |
|---|---|
| رمضان | ششم |
| ایام | پنجشنبه |
| تاریخ | ۱٤۰۳/۱۲/۱٦ |
| افطار | ۵:۵۸ |
| عشاء | ۷:۱۷ |
| ختم سحری | ٤:٤۵ |
| آذان فجر | ٤:۵۰ |

### د عالیقدر امیرالمؤمنین (حفظه الله) حکم:
## د جوماتونو د برښنا لګښتونه معاف دي

د عالیقدر امیرالمؤمنین حفظه الله تعالی د تازه حکم له مخې د جوماتونو د برښنا لګښتونه معاف اعلان شول.د اسلامي امارت ویاند ذبیح الله مجاهد پر خپله اکس پاڼه لیکلي ،چې (د یاد حکم له مخې د مسجدونو د برق لګښتونه معاف دي، اړوندې امارتي اداري دي، په راتلونکي کې د یادو لګښتونو د تادیې غوښتنه نه کوي).ښاغلي مجاهد زیاته کړې، چې البته دقیقه څارنه دې کیږي، ترڅو د جوماتونو برښنا په نورو ځایونو کې استعمال نشي.

# بلخ کې د سوداګریز مارکېټ د جوړولو طرحه تأیید شوه



د پانګونې بین‌الوزارتي کمېټې نوبتي غونډه پرون په مرمرینه ماڼۍ کې ترسره شوه.دې غونډې ته په بلخ ولایت کې د ارشاد، حج او اوقافو وزارت پر ځمکه د خصوصي سکټور له لوري د سوداګریز مارکېټ د جوړولو او همدا راز د مایع ګاز صنعت طرحې د بحث لپاره وړاندې شوې. په غونډه کې له هراړخیز بحث وروسته په بلخ ولایت کې د ارشاد، حج او اوقافو وزارت پر ځمکه د سوداګریز مارکېټ جوړولو طرحه د تأیید وړ وبلل شوه او د منظورۍ په موخه اقتصادي کمېسیون ته راجع شوه. همدارنګه د مایع ګاز د صنعت په اړه د ایراني پانګوالو... ۷مخ

## رسیدگی به دوسیه های حقوقی و جزایی در محاکم ولایات بدخشان و تخار

محاکم ولایت بدخشان طی ماه گذشته علاوه بر رسیدگی به ۵۶۲ دوسیه، ۲۶۹ وثیقه مختلف را نیز اجرا کرده است.در این مدت، است و ۲۶۹ وثیقه مختلف نیز در این محاکم اجرا شده است. طبق یک خبر دیگر، محاکم ولایت تخار طی دو هفته گذشته



در محاکم ولایت بدخشان به ۴۴۱ دوسیه حقوقی و ۱۲۱ دوسیه جزایی رسیدگی شده همچنان علاوه بر رسیدگی به ۴۷۰ دوسیه، ۱۳۸ وثیقه را نیز اجرا کرده‌اند... ص۷

## د هنر او فرهنګ معین:
## د بیرغ کارولو او ساتلو لپاره باید عامه پوهاوی ترسره شي

د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت د مقام د لاربنوونې او د هېواد د یو لړ علمي شخصیتونو د مشورو پر اساس، پرون د دغه وزارت د هنر او فرهنګ د معین مولوي عتیق الله عزیزي په مشرۍ د اسلامي امارت په رسمي بیرغ کې د کلمه طیبه د درناوي او په عامه ځایونو او نقلیه وسایطو کې یې د کارولو د لارو چارو په اړه ناسته ترسره شوه.په دې ناسته کې د هنر او فرهنګ معین ویلي دي: (( د اسلامي امارت په رسمي بیرغ کې د کلمه طیبه (لا اله الا الله محمد رسول الله) لیکل د دې بیرغ یوه ځانګړتیا ده ،چې د هېواد او اسلامي نظام د دیني ... ۷مخ




# ۳۴ ولایتونو کې د څښاک اوبو ۳۵۰ شبکې جوړې شوې

د کلیو د پراختیا وزارت په ۱۴۲ ولسوالیو کې د اوبو د وړو بندونو د جوړولو او بیارغونې چارو له بشپړیدو خبر ورکوي.د دې وزارت ویاند وایي: ددغو وړو بندونو د جوړولو لګښت شاوخوا ۱۲۶ میلیونه افغانۍ کیږي، چې د یاد وزارت له بودیجې ورکول کیږي.د کلیو د بیارغونې او پراختیا وزارت ویاند، نورالهادي عادل په دې اړه وایي: (( په ۱۴۲ ولسوالیو کې مو د کوچنیو بندونو د جوړولو او بدیلو پروژو کار پیل کړی و، چې اوس بشپړ شوي او زموږ هېوادوال کولی شي ترې ګټه واخلي. دا بندونه د ۱۲۶ میلیونه افغانیو په لګښت جوړ شوي دي.)) ښاغلي عادل دغه راز وایي ،چې د کلیو د بیارغونې او پراختیا



وزارت د هېواد په ۳۴ ولایتونو کې د څښاک اوبو ۳۵۰ شبکې جوړې کړې دي او پر ۱۵۰ نورو شبکو کار روان دي.په دې لړ کې، ځینې کارپوهان د اوبو د بندونو جوړول د هېواد د اوبو د سرچینو د مدیریت او په افغانستان کې د کرنې د پراختیا لپاره اغېزناک ګڼي.د اقتصادي چارو شنونکی، لعل ځاځي په دې اړه وایي: (( موږ کولی شو له دې پوټانشیله ګټه واخلو، اوبه د کرنیز سکټور لپاره تنظیم کړو، د انرژي تولید کې مهم رول ولوبوو او د کار فرصتونه رامنځته کړو.))د اقتصادي چارو یو بل شنونکی، نجیب الله صدیقي هم په دې اړه وایي: ((خپل هېواد له اقتصادي ستونزو او کروندګر له کرنیزو ننګونو خلاص کړو... ۷مخ

## ډنمارک له افغانستان سره ۶.۹ میلیونه ډالره مرسته وکړه



د افغانستان اماني صندوق اعلان وکړ، چې ډنمارک په مختلفو سکتورونو کې له افغانستان سره ۶.۹ میلیونه ډالره (۵۰ میلیونه ډنمارکي کرون) مرسته کړې ده.دې صندوق ورمه ورځ په خپله ایکس‌پاڼه کې د یو پیغام په خپرولو سره ... ۷مخ

## فراه کې د ۲۷ اجباري ودونو مخنیوی شوی

د فراه د امر بالمعروف او نهي عن المنکر ریاست مسئولین وایي، چې په دې ولایت کې د ښځو د ۲۲۵ حقوقي موضوعاتو د هواري ترڅنګ، د ۲۷ اجباري ودونو مخنیوی شوی دی.
د یاد ریاست رئیس مولوي عبدالمجید صمیم وایي، چې روان کال یې د فراه ولایت په مرکز او ولسوالیو کې د ښځو ۲۲۵ حقوقي قضیې حل کړې، د ۲۷ ودونو مخنیوي یې کړی او د ښځو د میراث ۴۷ قضیې یې هم څېړلي دي، چې د دوی حقونه یې له اړوندو... ۷مخ

## د کندهار موزیم کې سلګونه تاریخي آثار ثبت شوي

د کندهار د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست مسئولین وایي چې د دې ولایت په موزیم کې ۱۸۹۶ بېلابېل تاریخي اثار ثبت شوي دي.د کندهار د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست د هنر او فرهنګ آمر عبدالشکور خپلواند باختر اطلاعاتي اژانس ته ویلي، چې په یاد موزیم کې د باختریانو، کوشانیانو، اسلامي او معاصرو دورو ۲ زره ۹۸۷ تاریخي اثار موجود دي، چې له دې جملې څخه ۱۸۹۶ اثار ثبت شوي، خو پاتې نور لا هم ثبت ته اړتیا لري.نوموړي زیاته کړه، چې په وروستیو درېو میاشتو کې ۱۹۰ کورني او ۲۲ بهرني سیلانیان د موزیم ننداري ته ورغلي دي، چې په بهرنیو سیلانیانو کې د چین، روسیې او اروپایي هېوادونو اتباع شامل دي... ۷مخ

## کونړ کې د بولډروال او کانکرېټي سړک د رغولو چارې پیل شوې

د ټولګټو وزارت وایي، په کونړ ولایت کې د ۷.۶ میلیونه افغانیو په ارزښت د سړکونو د ساتنې په موخه د بولډروال او کانکریټي سړک د رغولو چارې پیل شوې.یاد وزارت زیاتوي: د کونړ په ناړۍ او شېګل ولسوالیو کې د ۳۵۰ متره بولډروال (سنګ کاري دېوال) او د کانکریټي سړک د رغونې چارې د ټولګټو وزارت او خصوصي سکټور ترمنځ د ۷.۶ میلیونه افغانیو په ارزښت... ۷مخ

## د خوست د شیخ زاید پوهنتون تدریسي روغتون سره د درملو مرسته وشوه

د خوست ولایت ځایي مسئولینو له شیخ زاید پوهنتون سره د نږدې ۳ میلیونه افغانیو په ارزښت د درملو د مرستې خبر ورکړي دی.د خوست ولایت د شیخ زاید پوهنتون د عامه اړیکو او نشراتو مسئول عبدالرحیم هاتف باختر اطلاعاتي آژانس ته ویلي، چې د یاد پوهنتون اړوند تدریسي روغتون سره د بشري مدیریت او رهبري موسسې له خوا د ۲.۸ میلیونه افغانیو په ارزښت د شل قلمه درملو مرسته شوې ده.نوموړي ویلي ،چې یاد درمل ورمه ورځ د شیخ زاید پوهنتون... ۷مخ




## تخار کې امنیتي ځواکونو زرګونه کیلوګرامه تریاک نیولي

د کورنیو چارو وزارت ویاند خبر ورکړي، چې د تخار ولایت له نشه یي توکو سره د مبارزې منسوبینو د پلټونکو عملیاتو پایله کې ۶ زره او ۲۹۹ کیلوګرامه تریاک نیولي دي.د دې وزارت ویاند عبدالمتین قانع ویلي، چې دا تریاک د تخار مرکز تالقان د خطایان سیمې په مربوطاتو کې نیول شوي دي ... ۷مخ



# د جهادي تاریخ لیکنه د قربانیو، سرښندنو او اسلامي ارزښتونو ساتنه ده

محمد قاسم عزام

د افغانستان جهادي تاریخ د تېرو ۴۰ کلونو اوږده مبارزه، قرباني او سرښندنې لري، چې د هېواد د آزادۍ، خپلواکۍ او د اسلامي نظام د قیام لپاره شوې دي. د دې تاریخ مستند کول د یوه ملت د هویت ساتنې، د راتلونکو نسلونو د پوهاوي او د جهادي ارزښتونو د خوندي کولو لپاره اړین دي. د جهادي خاطراتو راټولول د مجاهدینو قربانۍ ژوندۍ ساتي او د یوه تاریخي امانت پـه توګه یې راتلونکو نسـلونو ته سپاري.د افغانستان جهادي تاریخ او د هغه ارزښت

افغانسـتان د خپـل تاریـخ په اوږدو کې د ازادۍ، اسـتقلال او اسـلامي نظام د قیام لپاره بې شـمېره قربانۍ ورکړي دي. په تېرو ۴۰ کلونو کـې افغانانو د بېلابېلو استعماري او اشغالګرو ځواکونو پـر وړاندې مقاومت کـړی، چـې پکې د شـوروي یرغـل، کورنۍ جګـړې او د صلیبـي ځواکونو خلاف جهاد شـامل دي. دا مبـارزه یـوازې پوځي نـه وه، بلکـې فکري، سـیاسي او عقیدوي حرکت و، چې موخه یې د اسلامي شریعت حاکمیت، د کفري اسـتعمار له منګولو د هېواد خلاصون او د اسلامي ارزښتونو ساتنه وه.

د دې جهـادي تاریـخ مسـتند کـول د ملت د هویت سـاتلو، د مجاهدینـو د قربانیـو د نـه هېرولو او د راتلونکو نسـلونو د روزنـې لپاره حیـاتي اهمیت لـري. کـه د جهـاد تاریخ ونه ساتل شي، نو راتلونکي نسلونه بـه د خپلې مبارزې، دښـمن پېژندنې او خپل دیني مسئولیت په اړه له بې خبرۍ سره مخ شي. تاریخ ثابته کـړې، هغه ملتونه چې خپل تاریخ هېـر کړي، د پردیو د افکارو ښکار کېږي او د هغوی تر کلتوري، فکري او سیاسي استعمار لاندې راځي.د جهادي خاطراتـو راټولول د تاریـخ د ثبت یـوه مهمه هڅه ده. هغـه مجاهدیـن چې د دې خـاورې د آزادۍ لپاره یې خپل ژوند، کورونه او هر څه قرباني کړل، بایـد د تاریخ په پاڼو کې خونـدي شي. دا خاطـرات د افرادو شـخصي تجربې نه دي، بلکې د یو ملت د ازادۍ لپاره د ورکړل شـویو سرښندنو یوه ویاړلـې پاڼـه ده. د دې ثبتول راتلونکو نسـلونو ته دا ورښیي چـې ازادي د قربانیـو، صبر، اسـتقامت او د اللـه تعالـی د نصرت غوښتنې له لارې ترلاسه کېـږي.د جهـادي ارزښـتونو سـاتنه، د قربانیو مسـتند کول او د مجاهدینو د مبارزې ثبتول یـوه تاریخـي اړتیـا، شرعي، اخلاقـي او ملي وجیبـه ده. کـه دا ارزښـتونه ونـه سـاتل شي، راتلونکي نسـلونه بـه د تاریخ له حقیقتونـو بې‌خبره وي او د دښمن فکري یرغل ته به تسلیم شي.

د جهادي مبارزې مسـتندول د افغانستان د تاریخ د یوې مهمې مرحلې ثبت او د ملت د هویت د سـاتلو لپاره اړیـن دي. جهاد یوازې نظامي مبارزه نه، بلکې د ایمان، ایثار او قربانۍ یو عظیم مـزل و، چـې پکې سـلګونه زره کسـانو خپل ژوند، مال او آرامۍ د اسـلام او ګران وطن د آزادۍ لپـاره قرباني کړې. د دې قربانیو راټولول او مستند کول یوه تاریخي وجیبـه ده، ځکه که دا ثبت نشي، نو د راتلونکو نسـلونو لپاره به یوازې مبهمې کیسې پاتې شي، چې د حقیقت، ثبـوت او د مجاهدینو له اصل موقـف څخه به بې خبره وي.د جهـادي خاطراتـو د راټولولو اهمیت

د جهادي خاطراتـو راټولول د تاریخ ثبت او د اسـلامي او ملي ارزښتونو د ساتنې یوه هڅه ده. اللـه تعالی فرمایـي: (ابراهیم: ۵) یعنې دوی ته د الله د ورځو (یعنې د هغـه د نصرت او بریا د ورځو) یادونـه وکړه، ځکه چې په دې کې د صبر کوونکو او شـکر باېلونکو لپاره نښـې دي. دا آیـت د دې حقیقـت څرګندونـه کـوي چـې د الله تعالـی د دین د نـصرت، جهاد او فتوحاتو کیسې باید خوندي او راتلونکو نسـلونو ته منتقل شي. رسـول اللـه ﷺ فرمایي: (بخاري). یعنې زما له لوري یو آیت هم کـه وي، خلکو ته یې ورسـوئ. دا حدیث موږ ته دا درس راکوي چې د دین د مهمو پیښـو انتقال او ثبـت یو لوی مسئولیت دی.

افغانـان بایـد د خپـل جهادي تاریـخ، د خپلـو اتلانـو او د هغوی د فداکارۍ لـه حقایقو څخه خـبر وي، ترڅو د خپلو قربانیـو ارزښـت درک کړي. که دا تاریـخ ونه لیکل شي، نو دښمنان به یې تحریف کړي، د مجاهدینـو حیثیت به تخریب کـړي او راتلونکـي نسـلونه به د خپـل هویـت او قربانیو له ارزښـت څخـه ناخبره پاتې شي. د اسـلامي امـارت دنده دا ده چې د شـهیدانو سـوانح، د مجاهدینو حماسي داستانونه، د جهادي قوماندانانو تګلارې او د جهاد د بریـاوو تفصیلات په مسـتند ډول ثبت کړي. رسول اللـه ﷺ فرمایي: (ابن ماجه). یعنې څوک چې علم پټ کړي، الله بـه د قیامت په ورځ د اور پرې ورپـه خوله کړي. د جهاد تاریخ یو داسـې علم دی، چې پټ پاتـې کېدل یې نـه یوازې تاریخي زیان دی، بلکې شرعي مسـئولیت هم لـه منځه وړي. دا تاریخ باید پـه قلمي، صوتي او تصویـري بڼـه خوندي شي، ترڅو راتلونکي نسلونه یوازې پر شـفاهي روایتونو تکیه ونه کړي، بلکې مسـتند اسـناد او لیـکلي آثـار ولـري. د جهادي ارزښـتونو د سـاتنې لپاره باید ځانګـړي څېړنیـز مرکزونه، آرشـیفونه او د مجاهدینـو د خاطراتـو راټولولـو منظـم پروګرامونه جوړ شي. د جهاد د هرې مرحلې تاریخي مستندات باید وساتل شي، له مهمو جهادي شخصیتونو سره مرکې وشي او د هغو سیمو اسناد خوندي شي، چېرته چې مهمې جګړې شوي دي.

که د جهادي خاطراتو راټولولو ته جـدي پاملرنه ونـشي، نو د قربانیـو، مبـارزو او بریـاوو اصلي کیسـې به له منځه ولاړې شي او دښـمنان به هڅه وکړي چـې دا تاریـخ تحریف کړي. د تاریـخ د ثبتولو لپـاره هڅې یوازې یـوه علمي پـروژه نه، بلکـې د دیني او ملي مسـئلیت یوه مهمه برخه ده. رسـول الله ﷺ فرمایـي: (ابو داود). یعنې تاسـو خبرې اورئ، نور به یې له تاسـو اوري او له هغوی به یې بیا نور اوري. دا نبوي سنت موږ ته د تاریخ د انتقال اهمیت رانښیي، ځکه چې که دا سلسله ودرېږي، نو راتلونکی نسل به له حقیقت څخـه ناخبره پاتې شي.جهادي میراث د راتلونکو نسلونو لپاره

د جهـاد میـراث د یـوه نسـل لپـاره محـدود نـه دی، بلکې دا د راتلونکـو نسـلونو لپـاره یوه داسـې تاریخـي، ایماني او فکري سرمایـه ده، چې هغوی ته د ازادۍ، قربانۍ، او اسلامي ارزښـتونو درس ورکوي. هغه ملتونه چې خپل تاریخ سـاتي، خپل هویت، ارزښتونه او لاسته راوړنې له لاسه نه ورکوي. که د افغانسـتان د جهـادي تاریخ ارزښـتونه راتلونکو نسلونو ته ونه سـپارل شي، نو هغوی به له خپل اصلي مسیر څخه منحرف شي او د دښـمن د فکري یرغل ښکار به شي.

د جهـاد تاریخ تـه باید خاصه پاملرنـه وشي پـه کتابونـو او مسـتنداتو کـې ثبـت شي او تعلیمـي نصاب کې هـم ځای ورکـړل شي، ترڅـو زمـوږ ماشـومان او ځوانان د جهاد د اهدافو، د شهیدانو د قربانیو او د اسـلامي مبارزې له واقعیتونو څخـه خبر شي. که نوی نسـل خپل تاریخ ونه پېژني، نو د هغو هڅو ارزښت به ورته معلوم نه شي، چې د اسـلامي نظام د قیام لپـاره شـوې دي او دا خلا به د دښمن له خوا د تحریف شویو روایتونو له لارې ډکه شي.

همدارنګه، د جهادي ارزښـتونو د انتقـال لپاره بایـد د ټولنیزو رسنیو، مسـتندو فلمونو، لیکنو او علمـي څېړنو لـه لارې کار وشي. د مجاهدینـو حـماسي کیسـې، د هغـوی ایماني قوت، اخـلاص او فـداکاري بایـد د راتلونکي نسل لپاره د الهام یوه سرچینـه وي، ترڅو هغوی پوه شي چې د اسـلام او وطن ساتنه یوازې د خبرو اترو له لارې نه، بلکې د قربانیو، سرښـندنو او ثابت قدمۍ له لارې کېږي.

د اسلامي امارت ۶مخ




# د وسلو په هکله د ټرمپ وروستي څرګندونې او ځمکني واقعیتونه؟!

د امریکا ولسمشر ډونالډ ټرمپ په تازه څرګندونو کې ویلي، چې غواړي له افغانستان څخه د امریکایانو پرېښودل شوې وسلې بېرته ترلاسه کړي. خو دا ادعا یوازې تشې لاپې دي او هېڅ واقعي بنه نه لري.

په افغانستان کې د امریکا جګړه، چې شل کاله یې دوام وکړ، په پای کې د افغانانـو په بریا پای ته ورسـېده. د دې جګړې په ترڅ کې امریکایي ځواکونو ګڼ شمېر وسلې او نظامي تجهیزات پرېښودل. دا وسلې افغانانو د جګړې په ډګر کې د غنیمت په توګه ترلاسه کړې، لکه څرنګه چې د هرې جګړې طبیعي پایله وي.

د نړیوالو قوانینو له مخې، کله چې یو لوری له جګړې څخه ماته خوري او خپل تجهیزات پرېږدي، نو مقابل لوری یې د جګړې د غنیمت په توګه اخلي. د امریکا وسـلې اوس د افغانستان د اسلامي امارت لاس ته ورغلي او دا ادعا چې بېرته به یې ترلاسه کړي، یوازې یو خیالي تصور ښکاري.

د افغانسـتان شـل کلن اشـغال یوازې د وسلو پرېښـودل نه، بلکې ستر بشري، اقتصادي او ټولنیز زیانونه درلودل. د امریکا له لوري د افغانستان خلک په بمباریو، چاپو او بې رحمانه عملیاتو کې له سختو ځاني او مالي زیانونو سره مخ شول. که د تاوان خبره کېږي، نو امریکا ته پکار ده چې افغانستان ته د دې ټولو ظلمونو حساب ورکړي.

د امریکا جګړه یواځې افغانسـتان ته نه، بلکې خپله امریکایانو ته هم د میلیاردونو ډالرو اقتصادي ضربه وه، خو دا زیانونه یې د خپلې ناسـمې ستراتېژۍ له امله وزغمل.

افغانسـتان یـو تاریخي مقاومت لرونکـی هېـواد دی. د انګرېزانو پر وړاندې د افغانانو مبارزه، د شوروي اتحاد ماتې او اوس د امریکا له منځه وړل، دا ټول د دې ثبوتونه دي چې دا ملت هېڅکله د پردیو تسلط ته سر نه ټیټوي. امریکا فکر کاوه چې افغانستان به د تل لپاره تر خپل کنټرول لاندې وساتي، خو د افغانانو کلک ایمان، حوصلې، قربانۍ او استقامت دا ثابته کړه چې دوی د خپلواکۍ لپاره هر ډول قرباني ورکولو ته چمتو دي.

د ډونالډ ټرمپ څرګندونې، چې غواړي له افغانسـتان څخه وسلې بېرته ترلاسـه کړي، له حقیقـت سره هېڅ تړاو نه لري. نه یوازې دا وسـلې د جګړې د غنیمت په توګه افغانسـتان ته پاتې شـوې، بلکې امریکا باید د افغانسـتان ولس ته د اشـغال د کلونو د ظلمونو او زیانونو غرامت هم ورکړي.

افغانسـتان یو خپلـواک، زړور او له تاریخي ویاړونـو ډک هېواد دی. نه یوازې د وسـلو تسـلیمول، بلکې د پردیو تسـلط منل هم د افغانانو په قاموس کې نشته.

# د روژې مبارکې میاشتې برکتونه او فضیلتونه




مولوي عبدالجبار درویش

د روژې مبارکه میاشت له خیر او برکته ډکه میاشت ده، دا میاشت د مسلمانانو د خوشحالې میاشت ده، دا دمسلمانانو د میلمستیا میاشت ده، د ا داسې میاشـت ده چې له مالدارانـو علاوه مسـکینان او فقیران هم پکې ماړه وي، د اداسې میاشـت ده چې پکې دمسلمانانو ورونـو عملنامـې لـه نیکو او صالحو اعمالو څخـه ډکېږي، دا داسې میاشـت ده چې پکې غټ غټ شـیطانان په زنځیرونو تړل کېږي، د اداسې میاشت ده چې هر ماښام یې اختر او خوشحالي وي، دا داسې میاشت ده چې دمسلمان ټول مخکنـي ګناهونه الله تعالی معاف کوي، دا داسـې میاشت ده چې لومړۍ عشره یې رحمت ده، دوهمـه عشره یې مغفـرت ده او دریمه عشره یـې ازادي له اوره ده، دا داسي لـه خیر او برکته ډکه میاشـت ده چې پکې یوه شپه له زرو میاشتو غوره او افضله ده، د دې اسـلامي میاشتې غوره والی د قران کریم د نـزول په وجه چې دې مبارکه میاشـت کـې دقران کریم د نزول آغاز او شروع شوې ده، دقـران کریم د نزول له وجې دې ته الله تعالی غـوره والی ور کړی دی. دا داسي میاشت ده چې پکې نفل لمونځ د فرضو درجې او مرتبې ته رسیږي او یو فرض لمونځ کول د اویـاوو فرضو لمونځونو مقام او مرتبې ته رسیږي. داداسي میاشت ده چې غریب او مسکین مسلمان ورور له مالداره مسلمان ورور څخه زیات خوشحاله وي. داداسي میاشـت ده چې پکې یوه عـشره راځي چې پـه هغې کې مسـلمانان اعتکاف تـه کیني او الله تعالی ته شپه او ورځ عبادت کوي. یوه ورځ دالله رسول (ص) تشریـف راوړ د ممبر پر زینو او پوړو باندې یو یو قدم مبارک یې اخیستلو او اوچتولو چې لومړی قدم مبارک یـې اوچت کړو، نو ځان سره یې امین وویل او دوهم قدم مبـارک یې چې اوچت کړو بیـا یې آمـین وویل، چـې بیا یې دریم قدم مبـار اوچت کړو، نو بیا یې آمین وویل چې کله له وعظ او نصیحـت او لمونځ کولو فارغ او خلاص شو، صحابه کرام ټول ورنه راچا پېره اورا تاو شـول او پوښـتنه یې ورنه وکړه چې آی د الله تعالی رسـوله! نـن ورځ دې یو عجیـب او غریـب عمل تر سره کړو چـې له دې مخکې دې داسي عمـل او کار نه و کړی. له موږ سره سـوچ او فکر پیدا شو، دا څه خبره وه، لـږ مو پوه کړه. دالـلـه تعالـی رسـول (ص)ورته وفرمایل چې نن یوه جلیل القدره فرشـته او ملایکه (جبرائیل علیه السلام ) راغلې وه، هغې ښیرې او بد دعا کولـې او ما ورباندې آمین ویل، هغې فرشـتې درې ښیرې او بد دعا وکړې: یوه ښېره داوه چې جبرائیل علیه السـلام وویل چې الله تعالی دې هغه سړی هلاک او بربـاد کړي چې د رمضان مبارکه میاشـت راشي او دی ور بانـدې په الله تعالې ځان ونه بخښـې ما وویل چـې امین بیا یې وویل چې الله تعالی دې هغه سـړی هلاک او برباد کـړي چې موراوپلار او یا یو له دې دواړو یې ژوندي وي او دی وربانـدې جنـت ته ځان داخـل نه کړي نو مـا وویل چې امین بیا یـې وویل: الله تعالی دې هغه سـړی هلاک او برباد کړي چې په یو مجلس کې دالله تعالی د رسـول (ص) نـوم مبارک ذکر شي او دا سړی وربانډې صلی الله ونه وائي. دا سـړی دې الله تعالی هلاک کړي. ما وویل چې امین. عزتمنو مسلمانانو وروڼو! چې کله هم داسې یوه جلیل القدره فرشته ښـیري او بد دعا وکړي او د الله تعالی خوږ پیغمبر حضرت محمد مصطفی ص وربانډې آمین ووایې، ستاسـو څه سـوچ او فکر دی چې دا دعـا به قبوله نشي! ضرور او خامخـا به قبلېـږي دغه درې خطرناکې مسـئلې مو واوریدې. دې باندې عمل کـول ډېر زیات ضروري دي. دا داسې میاشت ده چې په کې مسلمانان وروڼه زیات نه زیـات دنیک عمـل مزدوري کوي، د زکـوة مال څوک رجب المرجـب کې ور کـوي او څوك یې په شـعبان المعظم میاشت کې ورکـوي او څوك یـې درمضان مبارکې میاشتې کې ور کوي. په هر ه اسـلامي میاشت کې زکات ورکـولای شي، خـو د روژې په مبارکه میاشـت کـې زیات اجر اوثواب لري، چې مسـکینان او فقیران هم په ښه خوراك او طعام باندې روژه ماتـه کړي. زموږ او ستاسـو مالدار وروڼه دې په چم ګاونډ کې د کونـډو، یتیمانو او محتاجـو خلکو ډېر زیات خیال وسـاتي او پاملرنـه دې ورباندې وکړي. مالدار وروڼه او د اسلامي نظـام مسـئولین دې د شـهیدانو کورنیو او کونـډو او یتیمانو ته ځانګړې پاملرنه وکړي، له بیت المال او یا دې د زکات او صدقې له مال نه یو یو راشن او مواد واخلي او پر خپلو خپلوانـو، یتیمانو او یـا دې د خپلو کلیوالـو یتیمانو باندې تقسیم کړي چې د شهیدانو کونډې او یتیمان خوشحاله شي او له خپلو مشرانـو ناامیده نشي. په دې مبارکه میاشت کې زیات زور د آخـرت کار ته ور کـړي، نه د دنیا کار ته، په دې مبارکه میاشت کـې به دقران کریـم ختمونو او تلاوتونو ته زیات وخت ورکړي، امام اعظـم ابوحنیفه رحمت الله علیه به په ټوله میاشت د رمضان کې یو شپیته دقران کریم ختمونه کول. دیـرش د ورځې، دیرش د شپې او یو په تراویحو کې. په دې مبارکه میاشـت کې زیات زورد نفلونو لمونـځ ته هم ورکړئ. په دې مبارکه میاشت کې زیات زور دالـلـه تعالی ذکـر او اذ کارو ته ورکړئ. په دې مبارکه میاشـت کې زیـات زور د شـپې تهجد و لمونځ ته ور کړئ، د دې اسلامي میاشتې هره دقیقه او ثانیه او هره لحظه ډېـره زیاته مهمه او قیمتي ده. یـوه ورځ عمـر فاروق رضي اللـه تعالی عنه یوې سـقاوي او نایي خانې تـه ورغی او ور داخل شو او حمام والا ته یې وویل چې ما ته درسول الله (ص) په طریقه دسر ویښتان جوړ کړه، کله چې نایي ته کیناسـتو، نو په ذکر یې شروع وکـړه. دوکانـدار خپله ږمنځ او قیچي راواخیسـته او په کار یې شروع وکړه، عمرفاروق رضي اللـه عنه ژبـه مبارکه دالله تعالی په ذکر خوځوله، دوکاندار ورته وایي چـې ای امیرالمؤمنینه! دا خولـه مبارکه دې لـه ذکره لږ بنده کړه، هسې نه چیرته تکلیف نشـئ، یعنې په ذکر کولو دې سر ټوپونه وهي، خداې مه کړه دسر مبارک پوستکی دې قطع نه کړم ،عمرفـاروق رضي الله عنه ورته وویل چې ته خپل کار کوه، زه به خپل کار کوم .یعني زه خپله ژبه له ذکر کولو نه شم بندولی، ځکه چي الله تعالی به د قیامت په ورځ له مانه د دې وخت پوښتنه کوي. دحضرت سـهل نـه روایت دی چي نبی کریم فرمایلي دي چې په جنت کې یوه دروازه ده او دهغې نوم ریان ده چې دې دروازه باندې به غـیر دروژه دارو نه بل څوک نه ننوځي. یعني بل څوك نشـئ تلای اواز بـه وشي چې روژه دار چیرتـه دي نو ټول روژه دار به را پا څي او په دغې ریان دروازه به جنـت ته ننوځي، بـل څوک به ورسره نـشي تلای چـې کله ټول روژه دار ننوځي، نو دا در وازه به بنده کړای شي، نو بیا به بل څوک پـه دې دروازه نـه داخلیږي نو مسـلمانانو وروڼو! کوښښ کوئ چې روژه په خرما باندې ماتوئ، که خرما له چا سره نه وي، نو بیا دې په اوبو سره ماتوي .الله تعالی دې موږ او تاسـو ټولو مسلمانانو وروڼو تـه په دې بانـدې دعمل کولو توفیق رانصیب کړي.

امین ثم امین

# رمضان؛ په سوداګرۍ کې عدالت او د بېوزلو لاسنیوی

ځواک یوسفزی

رمضان، د رحمت، مغفرت او برکتونو میاشت ده، خو ځینې سوداګر یې د کال تر ټولو ګټور تجارتي فصل (سیزن) ګڼي! دا هغه میاشت ده چې نرخونه د اخلاقو په تله نه، بلکې د «بازار د تقاضا» پر اساس ټاکل کېږي، احتکار ته «ښه مدیریت» ویل کېږي او د غریبو د لاسنیوي جذبه یوازې د څو خیراتي افطاریو تر حده محدوده پاتې کېږي.
په دې مبارکه میاشت کې، چې باید د سخاوت، انصاف او همدردۍ ننداره وشي، د بازارونو صحنه بیا برعکس حالت خپلوي. خرما، چې د روژه‌ماتي لپاره له ټولو اړین توکی دی، ناڅاپه داسې ګرانېږي چې ته به وایې بې له خرما روژه نه افطارېږي. د غوښې بیې خو بیا دومره لوړې وي چې د غریب سړی له دسترخوانه یې نوم هم ورک شي او د مېوو نرخونه داسې لوړ خېږي چې خلک فکر وکړي رمضان د روژې نه، بلکې د «لګښت ازموینې» میاشت ده!
اسلام سوداګرو ته د انصاف، صداقت او امانتدارۍ درس ورکوي، خو ځینې یې بیا دا میاشت د « ګټې بهترین سیزن» فرصت بولي، چېرې چې هر څوک هڅه کوي خپل جیبونه د نورو پر حساب ډک کړي. احتکار ته «سوداګریز تدبیر» وایي، د نرخ لوړولو ته «اقتصادي ضرورت» نوم ورکوي او د غریبو لپاره د یو ځل افطاري ورکول د ټولې میاشتې خیرات ګڼي!
د رمضان اصل فلسفه دا ده چې انسان خپل نفس ته کنټرول ورکړي، د تقوا، وروروالۍ او همدردۍ روحیه پیدا کړي، خو دلته بازار داسې ښکارېږي لکه چا، چې د «چټک اقتصادي پرمختګ» مسابقه اعلان کړې وي. د سؤال وړ خبره دا ده: رمضان د عبادت، وروروالۍ او د بېوزلو د ملاتړ میاشت ده، که د اقتصادي مسابقې هغه فصل چېرې چې هر څوک هڅه کوي د نورو جیبونه د ځان لپاره خالي خپلو تجارتي فعالیتونو له لارې د اسلامي اصولو پر بنسټ خپل کاروبارونه پر مخ بوزي. اسلام د سوداګرۍ په برخه کې د انصاف، صداقت، امانتدارۍ پر اهمیت ټینګار کوي.
سوداګر باید د رمضان په مبارکه میاشت کې د خپلو فعالیتونو له لارې د غریبو، اړمنو او کم عاید لرونکو خلکو سره همکاري یوازې د فردي روحاني پرمختګ لپاره خپل کار وکړي، بلکې د ټولنې د سوکالۍ، عدلي عدالت، وروروالۍ او د غریبو د ملاتړ لپاره هم خپل ګامونه پورته کړي. که سوداګر د نرخونو په تنظیم، د احتکار پر ضد مبارزه او د خلکو اړتیاوو ته مناسب ځواب ورکولو سره خپل کاروبار پر مخ وړي، نو نه یوازې خپلې



کړي؟
رمضان میاشت د مسلمانانو لپاره یوه ځانګړې او مبارکه دوره ده چې نه یوازې د عبادت او ځان اصلاح کولو لپاره، بلکې د ټولنیزو، اقتصادي او اخلاقي اصلاحاتو لپاره هم یو بې‌ساری فرصت ګڼل کېږي.
په دې میاشت کې، مسلمانان نه یوازې خپل روحاني حالت ته وده ورکوي، بلکې د ټولنې د سوکالۍ، انصاف، همدردۍ او اقتصادي پرمختګ لپاره هم جدي هڅې کوي. د رمضان میاشت سوداګرو ته هم د دې موقع ورکوي چې د وکړي او د ټولنې د اقتصادي عدل رامنځته کولو لپاره خپل رول ادا کړي.
د نرخونو بېځایه زیاتوالی، احتکار او له مال څخه بې عدالته ګټه اخیستنه باید د سوداګرو له کړنو لرې وي، ځکه چې اسلام د سوداګرۍ په اړه سخت اصول لري چې د هر ډول بې‌عدالته عملونو مخنیوی کوي. د رمضان روحانیت باید یوازې په عبادتونو کې نه، بلکې په سوداګریزو فعالیتونو کې هم څرګند شي.
دا میاشت د سوداګرو لپاره یو ځانګړی فرصت دی چې نه اقتصادي ګټې ترلاسه کوي، بلکې د ټولنې د سوکالۍ، عدالت او د غریبو د ستونزو د حل لپاره هم موثر ګامونه اخلي. په دې توګه، د رمضان میاشت د سوداګرو لپاره نه یوازې د تجارتي کامیابۍ، بلکې د ټولنې د هوساینې او انصاف رامنځته کولو لپاره هم یوه ځانګړې او ارزښتناکه دوره ده.
د رمضان میاشت کې د بازارونو وضعیت د پام وړ موضوع ده. لکه څنګه چې په دې میاشت کې د مختلفو خوراکي توکو، مېوو، غوښو، مستو، خرما او نورو ضروریاتو تقاضا زیاتېږي، بازارونه ډېر وخت د نرخونو زیاتوالی تجربه کوي. د دې وضعیت په وړاندې، اسلام سوداګرو ته لارښوونه کوي چې د احتکار، د نرخونو د بې‌ځایه زیاتوالي او د مال په نوم له بې‌عدالته ګټې اخیستلو څخه ډډه وکړي. اسلام په خپلو اقتصادي اصولو کې د صداقت، انصاف او امانتدارۍ پر اهمیت ټینګار کوي.
د رمضان په میاشت کې، مسلمانان باید د خپلو تجارتي فعالیتونو له لارې د خلکو اړتیاوې پوره کړي او د اسلامي اقتصاد اصولو ته په پام سره د سوداګریزو نرخونو کنټرول وکړي. که سوداګر له دې اصولو سره سم عمل وکړي، نو نه یوازې خپله روحاني پرمختګ ته وده ورکوي، بلکې د ټولنې اقتصادي وضعیت سره هم مرسته کوي. سوداګر باید د دې میاشتې روحیه په خپلو کاروبارونو کې د انصاف، صداقت او د نرخونو د کنټرول لپاره پلي کړي، ترڅو خلک له اضافي فشارونو او لوړو نرخونو څخه وژغورل شي. که سوداګر د احتکار پر ضد مبارزه وکړي، د نرخونو د لوړېدو مخه ونیسي او له خلکو سره د مناسبو قیمتونو له لارې سوداګري وکړي، نو د ټولنې د سوکالۍ لامل به شي او د ټولو مسلمانانو لپاره د اسلام د اقتصادي اصولو مطابق د عمل کولو یو بې‌ساری مثال به وي.
د رمضان میاشت د افغانستان په څېر هېوادونو کې، چې د بېوزلو او د فقر کچه یې خورا لوړه ده، د غریبو او بېوزلو خلکو لپاره یو ځانګړې فرصت دی چې د هغوی د ستونزو د حل لپاره ټولنه خپل کردار ادا کړي. مالدار کسان باید د رمضان په مبارکه میاشت کې د خپلو شتمنیو یوه برخه د صدقې، زکات او فطر له لارې له بېوزلو او اړمنو خلکو سره شریک کړي. اسلام د صدقې او زکات ورکولو لپاره ځانګړې لارښوونې لري چې د ټولنیز انصاف او اقتصادي عدل په لاره کې مهمې دي. پیغمبر ﷺ فرمایلي دي: «مال هېڅکله نه کمېږي، که چیرې ته صدقه ورکړې.» (مسلم) د دې حدیث پر بنسټ، مالدار کسان باید خپل مال د ټولنې د غریبو لپاره ورکړي، ترڅو د هغوی د ستونزو حل وشي.
د رمضان میاشت له غریبو سره د همدردۍ او د هغوی د ملاتړ لپاره یوه ځانګړې دوره ده، چې په کې مالدار کسان او ټولنه باید له اسلامي اصولو سره سم د خپلې شتمنۍ یوه برخه د بېوزلو او اړمنو خلکو لپاره وقف کړي. که مالدار کسان د غریبو د ملاتړ لپاره جدي ګامونه پورته کړي، نو نه یوازې دوی خپل ایمان ته خدمت کوي، بلکې د ټولنې دننه د سوکالۍ، عدلي او اقتصادي عدل وضعیت هم رامنځته کوي.
د حکومت رول د رمضان په میاشت کې خورا مهم دی. حکومت باید د ټولنې د غریبو طبقو لپاره د پالیسۍ جوړولو په برخه کې جدي اقدامات وکړي. د رمضان په میاشت کې، حکومتي چارواکي باید د فطرې او زکات جمع کولو لپاره جدي تدابیر ونیسي، ترڅو هغه پیسې بېوزلو او اړمنو خلکو ته ورسوي. حکومتونه باید د نرخونو د زیاتوالي او د سوداګریزو ستونزو د حل لپاره هم جدي تدابیر ونیسي. په دې میاشت کې، د دولت له خوا باید د احتکار پر ضد مبارزه وشي، د نرخونو زیاتوالی کنټرول شي او د سوداګرو لپاره مناسب شرایط رامنځته شي چې هغوی په اسلامي اصولو کې عمل وکړي.
حکومت باید د اقتصادي بحرانونو او د نرخونو د لوړېدو د مخنیوي لپاره د فقر او بېوزلۍ د مخنیوي په لاره کې اقدامات وکړي، ترڅو ټولنه له اقتصادي ستونزو سره مخ نشي. د دې میاشتې په جریان کې، حکومت باید د ټولنیز انصاف پر بنسټ پالیسۍ عملي کړي، چې د ټولنې ټول غړي د سوکالۍ، وروروالۍ او انصاف احساس وکړي. د حکومت له خوا د فقر د له منځه وړلو، د غریبو د وضعیت د ښه کولو او د اقتصاد د پیاوړتیا لپاره هم ګامونه پورته کول ضروري دي.
د رمضان میاشت د یوې ټولنې لپاره یوازې د عبادت او فردي اصلاح لپاره نه ده، بلکې د ټولو غړو لپاره یوه مهمه دوره ده چې باید د ټولنیزې، اقتصادي، دیني او اخلاقي روحیې په رامنځته کولو کې همکاري وکړي. مسلمانان باید د خپلو روحاني عباداتو ترڅنګ د ټولنې د سوکالۍ، د اقتصادي عدل او د غریبو د ملاتړ لپاره همکارۍ وکړي.
د رمضان میاشت کې، د ټولنې هر فرد باید د اسلام

۶مخ

# اسلام او د ټکنالوژۍ د پرمختګ او اخلاقي ارزښتونو توازن

ادریس سنګر

په معاصر عصر کې ټکنالوژۍ د انسان د ژوندانه هره برخه اغېزمنه کړې ده. له ارتباطاتو نیولې، تر زده کړو، طب، سوداګرۍ او حتی مذهبي چارو پورې، ټکنالوژي زموږ ژوند اسانه کړی، خو مهمه پوښتنه




دا ده چې اسلام د ټکنالوژۍ په اړه څه نظر لري؟ ایا ټکنالوژي یوازې د مادي پرمختګ وسیله ده، که له اخلاقي او دیني ارزښتونو سره یوځای کیدلی شي؟اسلام د علم، تحقیق او پرمختګ دین دی او دا هېڅکله د ټکنالوژۍ یا نویو اختراعاتو مخالفت نه کوي، بلکې له هغو د سمو استفادو لپاره اخلاقي چوکاټ ټاکي. دا مقاله د اسلام له نظره د ټکنالوژۍ اهمیت، د هغې د مثبتو او منفي اړخونو او د اسلامي اصولو له مخې د ټکنالوژۍ د استعمال د معیارونو په اړه خبرې کوي.

**اسلام او د علم وده**

اسلام د علم زده کړې ته ډېره پاملرنه کړې ده. قرآن کریم او احادیث موږ ته د علم د اهمیت درس راکوي. د اسلام لومړنی وحی د «اقْرَأْ» (ولوله) امر و، چې دا د علم د اهمیت ښکارندویي کوي. د نبي کریم ﷺ یو حدیث دی: ژباړه: (د علم زده کړه پر هر مسلمان سړي او ښځې فرض ده.)
په همدې اساس، ټکنالوژي د علم یوه بڼه ده او اسلام د هغې زده کړې او ودې ته هڅونه کوي، ترڅو انسانان ترې مثبتې ګټې واخلي.

**د ټکنالوژۍ مثبت اړخونه په اسلامي نړۍ کې**

**د ارتباطاتو اسانتیا**

ټکنالوژي د مسلمانانو ترمنځ د ارتباطاتو لپاره اسانتیاوې برابرې کړې دي. نن سبا مسلمانان کولی شي د انټرنیټ، ټولنیزو رسنیو او آنلاین پلیټ فارمونو له لارې د اسلامي زده کړو، خطبو او فتواوو ترلاسه کولو ته لاسرسی ولري.

**د دین تبلیغ او دعوت**

د ټکنالوژۍ له برکته، د اسلام پیغام د نړۍ هر ګوټ ته رسول کېږي. اسلامي علما کولی شي د یوټیوب، فېسبوک او ویب‌سایټونو له لارې خلکو ته دیني زده کړې ورکړي او دا چاره د اسلامي دعوت لپاره یوه لویه اسانتیا ده.

**د اسلامي علومو ساتنه**

ټکنالوژي د اسلامي علومو د ساتنې او خپرېدو لپاره مهم رول لوبولی. نن سبا، قرآن کریم، احادیث او د اسلامي فقهې کتابونه په ډیجیټلي بڼه موجود دي، چې دا د اسلامي میراث د ساتلو لپاره ډېره مهمه لاسته راوړنه ده.

**د اسلامي مالیاتي سیسټم پرمختګ**

اسلامي بانکدارۍ او مالي سیسټمونو هم د ټکنالوژۍ له برکته وده کړې. د فین‌ټیک (FinTech) اسلامي شرکتونو د سود نه لرونکو مالي خدماتو لپاره نوې اسانتیاوې رامنځته کړې دي، چې دا د شریعت له اصولو سره سم مالي معاملاتو ته زمینه برابروي.

د ټکنالوژۍ منفي اړخونه او اسلامي حللاره

**غیراخلاقي محتوا**

د انټرنیټ او ټولنیزو رسنیو پراخې شبکې ځینې وختونه غیراخلاقي محتوا خپروي، چې له اسلامي ارزښتونو سره ټکر لري. اسلام مسلمانان هڅوي چې خپل نظرونه، اوریدل، او اعمال د الله د رضا مطابق وساتي. قرآن کریم وایي:
(النور: ۳۰) یعني، «مؤمنانو ته ووایه چې خپل نظرونه ټیټ کړي او خپل عفت وساتي.»
مسلمانان باید هڅه وکړي چې د ټکنالوژۍ مثبتې ګټې واخلي او له غیراخلاقي محتوا ځان وساتي.
د ټکنالوژۍ له لارې دوکه او دروغ ټکنالوژي ځینې وختونه د دروغو، جعلي خبرونو او خلکو ته د دوکې ورکولو وسیله ګرځي. اسلام د صداقت او امانتدارۍ دین دی او دروغ ویل یا د خلکو دوکه کول حرام دي. رسول الله ﷺ فرمایلي دي: ژباړه: (څوک چې موږ ته دوکه راکړي، زموږ له ډلې څخه نه دی.)مسلمانان باید د ټکنالوژۍ له لارې د رښتینولۍ او صداقت پیغام خپور کړي، نه دا چې خلکو ته دوکه ورکړي.

۶مخ

# پروژه تاپی و منفعت های اقتصادی و شغلی

احمد

پروژه لوله گاز تاپی که گاز طبیعی را از ترکمنستان به افغانستان ، پاکستان وهند منتقل می کند، یکی از پروژه های بزرگ منطقوی به شمار می رود که باتطبیق این پروژه افغانستان به دهلیز اقتصادی میان آسیای مرکزی و جنوبی تبدیل خواهد شد.خط لوله گاز تاپی به طول ۱۸۱۴ کیلومتر و قطر۵۶ انچ خواهد بود که از جنوب ترکمنستان آغاز و پس از طی حدود۱۵۰ کیلومتر از خاک ترکمنستان وارد ولایت هرات می شود. این لوله گاز تقریبا ۸۳۰ کیلومتر در خاک افغانستان امتداد می یابد وبا عبور از هرات، فراه، نیمروز، هلمند وقندهار به شهر کویته پاکستان می رسد و از آن جا به ملتان و پس از امتداد ۸۰۰ کیلومتر به هند می رسد.
کار لوله گاز طبیعی ترکمنستان (تاپی )که قرار است از مسیر افغانستان و پاکستان به هند انتقال یابد در دسامبرسال ۲۰۱۵ م نخست از ترکمنستان آغاز گردید، اما نظربه عدم توانایی وضعف مدیریت ودیپلوماسی حکومت گذشته، همچنان سنگ اندازی برخی کشور ها، تطبیق این پروژه با اهمیت در افغانستان به تاخیر افتاد، اما بعد از حاکم شدن امارت اسلامی در این کشور وتأمین امنیت مطمئن در افغانستان، کار عملی پروژه تاپی که سال ها پیش به یک رویا تبدیل شده بود به تاریخ ۲۱ سنبله سال جاری با حضور سران افغانستان و ترکمنستان آغاز شد، همزمان با آغاز کاراین پروژه بزرگ ، کارانتقال فایبر نوری، توسعه راه آهن تورغوندی ونیروگاه برق نورالجهاد شهر هرات نیز آغاز گردید وسران این دو کشور در مراسم گشایش کار




این پروژه، تطبیق و به پایه اکمال رسیدن این پروژه را سبب تقویه و رشد اقتصادی کشور های شامل این پروژه ، همچنان بهبود روابط کشور های منطقه عنوان کردند.
به تازگی دفتر مطبوعاتی مقام ولایت هرات نیز خبر داده که کار عملی پروژه تاپی در فازهای مختلف در شمال هرات به سرعت ادامه دارد. درخبر نامه این مقام آمده که اداره محلی هرات به تسریع روند کار این پروژه بزرگ اقتصادی متعهد بوده وسهولت های لازم را برای پیشرفت سریع آن فراهم کرده است.
بنابرین آغاز کار این پروژه بزرگ وبهره برداری آن نه تنها برای ترکمنستان و افغانستان ،بلکه برای کشور های منطقه نهایتاً با اهمیت است که خوشبختانه این دستاورد بزرگ بدست نظام حاکم دراین کشور رقم می خورد.
جادارد که به مزایای اقتصادی این پروژه در افغانستان به صورت اجمالی اشاره داشته باشیم:

ص۶

# د هیــواد معــاصر شــاعران



نوري

افغانستان لـه پخـوا زمانـې راهیسـې د سـترو شـاعرانو او ادیپوهانـو پـه روزلـو کـې لـه شـهرت څخـه برخمـن دی. پـه پښـتو او فـارسي (دري) ژبـو ډېـر د دغـو شـاعرانو دیوانونـه او کلیـات چـاپ او د فرهنـګ او ادب د مینوالـو پـه واک کـې ورکړ شـوي دي. لـه سلو کلونـو مخکـې او وروسـته پر افغانسـتان د پردیـو هېوادونـو پـه تیـري سره شـعر او ادب کمـزوری شـو؛ خـو لـه یـوې مـودې وروسـته بېرتـه مشـاعرې پیـل شـوې او د شـعر او ادب بهیـر بېرتـه غښـتلی شـوی دی. فرهنګپالـو او ادیپوهانـو د هېـواد د شـاعرانو پـه وروپېژندلـو کـې ډېـرې هلـې ځلـې کـړې، چـې پـه ننني ادب کـې یـې اغیـزې لیدلـی شـو. کـه څېـرې دغـو ادیپوهانـو د شـاعرانو د وروپېژندلـو لپـاره زیـار نـه وای ایسـتلی، خپـل شـاعران بـه مـو نـه شـوای پېژندلـی او د فرهنـګ او ادب سـطحه بـه مـو کمـزورې وای. لـه دغـو شـاعرانو څخـه امـین اللـه زمریالـی، د علـي محمـد خـان زوی او د عطـا محمـد خـان لمسـی د شـلمې پېـړۍ شـاعر او لیکـوال دی، پـر ۱۲۷۳ ل کال پـه کابـل ښـار کـې زېږېدلـی دی. لومړنـۍ زده کـړې یـې پـه حبیبیـه ښـوونځي کـې تـر رشـدیې پـورې پـای تـه ورسـولې. د دغـو زده کـړو پـه بهیـر کـې یـې لـه شـخصي استادانو څخـه د وخـت مـروج کتابونـه هـم ولوسـتل. لومړنـۍ دنـده یـې پـر ۱۲۹۰ ل کال د پکتیـا د ملـک زاده ګانـو پـه ښـوونځي کـې سرمعلمـي وه. څلـور کالـه وروسـته د شـاهي غونـډ سرکاتـب وټـاکل شـو. پـر ۱۳۰۰ ل کال پـه ننګرهـار کـې د توپچـي کنـدک مـشر شـو. پـه ۱۳۰۲ ل کال د شـینوارو د نازیانـو (قومانـدان) وګومـارل شـو. پـر ۱۳۰۳ ل کال پـه کابـل کـې د ارکان حـرب ځانګـي مدیـر او پـر ۱۳۰۴ ل کال د دفـاع وزارت د مامورینـو پـه مدیریـت کـې وټـاکل شـو. ښـاغلی زمریالـی پـر ۱۳۱۰ ل کال پـه کابـل کـې د کابـل ادبي انجمـن لـه تاسیس سره سـم د دغـه انجمـن غـړی شـو. پـر ۱۳۱۶ ل کال د ادبیاتـو او حفـظ آثـار د ځانګـي مرسـتیال شـو او پـر ۱۳۱۷ ل کال د پښـتو ټولنـې د پښـتو ژبـې مدیـر وګومـارل شـو. پـر ۱۳۱۹ ل کال د نجـات ښـوونځي د پښـتو ځانګـي ښـوونکی و. پـر ۱۳۲۰ ل کال د پښـتو ټولنـې د مرسـتیالي دنـده وروسـپارل شـوه. پـر ۱۳۲۳ ل کال د کابـل پـه (دارالمعلمـین) کـې ښـوونکی شـو او سرېـره پـر دې د ادبیاتـو د پوهنځـي د استاد دنـده یـې هـم سرتـه رسـولې ده.

ښـاغلی زمریالـی پخپلـه غوښـتنه د ۱۳۲۵ ل کال د زمـري پـر ۲۷مـه نېټـه تقاعـد شـوی دی. پـر خپلـې مورنـۍ ژبـې سربېـره پـه پـارسي، انګرېـزي، اردو، روسي، سنسـکریټ او فرانسـوي ژبـو هـم پوهېـده. د پښـتو ژبـې دغـه خدمتـګار او د هېـواد تکـړه پوځـي پـه خپلـو رسـمي دنـدو او ماموریتونـو کـې څلـور اعـزازي نښـانونه ګټـلي دي. د زمریـالي د شـعر بېلګـې:

**ها څـو ځاځـکي سره یـو سي**
**سمنـدر سي**
**ها څـو کسـه سره ټـول سي نـو**
**لښـکر سي**
**هره ډلـــه چـې یـو یـو سي در**
**پـــه در سي**
**کـه لښکر سره فرد فرد سي مات**
**ابتر سي**
**ته پښتون یې ضعیف نـه یـې سره**
**ټـول سه**
**د قـوم ګـټـې ته بېدار او یو**
**کهـول سه**

. د زمریـالي ګـڼ شـمېر اثـار او لیکنـې پـه کابـل کالنـۍ او طلـوع افغـان اخبـار کـې خپاره شـوي دي، چـې ځینـې یـې پـه لانـدې ډول دي: پښـتو مرغلـرې. پـه دې کتـاب کې یـې لنـډې او د پښـتو د پخوانیـو شـاعرانو شـعرونه راغونـډ کـړي او د کتاب پـه سر کـې یـې د پښـتو پـر ادب یـوه مفصلـه سریـزه لیکلـې ده. د شـعرونو دېـوان :دا د ښـاغلي زمریـالي خپـل شـعرونه دي او د بیتونـو شـمېر یـې یـو نیـم زرو تـه رسـېږي. پښـتو متلونـه: دا اثـر د ښـاغلي محمـد قدیـر تـره کي پـه همـکارۍ د پښـتو متلونـو شرح یـې پـه پاړسـو لیکلـې ده او د کابـل د ادبي انجمـن لـه خـوا چـاپ شـوی دی. پښـتو قرائـت (د شـپږم ټولګـي لپـاره): دا کتـاب یـې د ښـوونځیو د شـپږم ټولګـي لپـاره د پوهنـې وزارت پـه غوښـتنه لیکلی او د همدغـه وزارت لـه خـوا څـو ځـلي چـاپ شـوی دی . پښـتو کیـلي: دا یـې د پښـتو ژبـې درې ټوکـه درسي کتابونـه دي چـې د پښـتو کورسـونو لپـاره د ښـاغلي قیـام الدیـن خـادم او ښـاغلي یعقـوب حسـن پـه ملګرتیـا یـې لیکلـي او د پښـتو ټولنـې لـه خـوا چـاپ شـوي دي. د یـوې پښـتنې ملـي احساسـات: یـوه خـوږه تاریخـي کیسـه ده، چـې پـه پښـتو یـې نظـم کـړې او د ۱۳۱۴ ل کال د طلـوع افغـان ورځپاڼـې پـه کالنـۍ کـې خپـره شـوې ده. پښـتو څنګـه وروزو؟. دا یـوه وړه رسـاله ده، چـې د ۱۳۱۵ ل کال د کابـل پـه سـالنامه کـې چـاپ شـوې ده. د پښـتو ژبـې فیلالوجـي او پخـواني ادبیـات. دا یـوه اوږده رسـاله ده چـې د پښـتو ژبـې د فیلالوجـۍ برخـه او د پښـتو ادبیاتـو لرغونـې برخـه پکـې څېـړل شـوې او د پښـتو ادب پـر تحـول بحـث شـوی دی. دا رسـاله د ۱۳۱۶ ل کال پـه کابـل سـالنامه کـې نـشر شـوې ده. پښـتو ادبیاتـو تـه یـوه کتنـه :دا د ښـاغلي زمریـالي بلـه اوږده رسـاله ده، چـې د پښـتو پـر شـعر او شـاعرۍ یـې لیکلـې ده او د ۱۳۱۷ ل کال د کابـل پـه سـالنامه کي خپـره شـوې ده.پښـتو تـه یـوه کتنـه: پـه ۱۳۱۱ ل کال چـاپ شـوې ده. پښـتو: پـه۱۳۲۰ کالنـۍ کـې چـاپ شـوې ده. شرح احـوال و افـکار خوشـال خـان خټـک: پـر ۱۳۱۵ ل کال کلنـۍ کـې خپـره شـوې ده. پښـتو و پښـتو لوګهـا: پـه ۱۳۱۲ کالنـۍ کـې او همدارنګـه د شـعرونو یـوه بلـه ټولګـه، پـه پېښـور کـې خپـره شـوې ده. امـین اللـه زمریالـی د ۱۳۶۱ ل کال د وري پـر لومـړۍ نېټـه لـه دې فـاني نـړۍ سـترګې پټـې کـړې.د دغـه شـاعر ونـډه د فرهنـګ پـه غښـتلي کولـو کـې نـه هېرېدونکـې ده. متـل دی، چـې وایـي: لـه ځاځکـي ځاځکـي سـیند جوړېږي. هـر شـاعر او لیکـوال د دغـه ادبي سـیند پـه جوړولـو کـې ونـډه لـري. مـوږ بایدخپلـو درنـو شـاعرانو تـه کـه ژونـدي دي او یـا کـه لـه دې نـړۍ څخـه تللي دي، درنـاوی ولـرو او تـر خپلـه وسـه پـورې د هغـو د لیکنـو او اثـارو پـه وروپېژندلـو کـې خپلـه دنـده تـر سره کـړو.

## فرهنگ های ناپسند و اقتصاد ورشکسته خانواده ها

استوار

در حاشـیه رسـم و رواجهـای پسـندیده وجـا افتـاده در جامعـه مـا اسـتند یـک تعـداد رسـوم نـا پسـند کـه از هرحیـث شـکننده و آزار دهنـده انـد کـه بایـد روی اینگونـه پلشـتی هـا خـط بطـلان کشـیده شـود، زیـرا چنیـن رسـم و رواجهـای ناپسـند در حقیقـت امـر بیـداد کـردن درحـق خـود اسـت. البتـه تحـت عنـوان سـیالی وشریکـی ،هـم چشـمی و ...درایـام ویـژه ؛ چـون : سـال نـو، عیـد وبـرات وغیـره خانـواده هـا زیربـار رسـم و رواجهـای پـوچ ومیـان تهـی باآنکـه اقتصـاد شکسـته دارنـد تحـت فشـار قـرار گرفتـه وفشـار هـای کمـر شـکنی را متحمـل می‌شـوند، کـه پیگیـری و دنبـال نمـودن چنیـن رسـم و رواجهـا بـه عناویـن مختلـف از سـوی یـک تعـداد خانـواده هـا جـز جـبر وبیـداد بـالای همدیگـر چیـز دیگـری نیسـت. بـه گونـه مثـال دوجوانـی کـه باهـم نامـزد اسـتند در ایـام رمضـان ،عیـد ،سـال نـو ... بایـد بـه نـام رمضانـی ،عیـدی و نـوروزی از طـرف خانـواده پـسر لبـاس طـلا و مـواد خوراکـه تهیـه گردیـده وبـه خانـواده دخـتر بـرده شـود آن هـم بـه خیـال وخواسـت خانـواده عـروس. در غیـر آن مهـم را طـوری رنـگ و بـو می‌دهنـد کـه گویـا ارزشـی بـه دخـتر مـا قایـل نیسـتند. در کنـار ایـن معضـل بـه صـد هـا توقـع ناپسـند دیگـر ایـن چنیـن نابرابـری هـای اجتماعـی از سـالیان متمـادی در میـان خانـواده هـا وجـود داشـته ودارد کـه همیـن رسـم و رواجهـای ناپسـند در نهایـت امـر باعـث گسسـتگی روابـط در میـان خانـواده هـا نیـز گردیـده ویاهـم اینکـه رشـته دوسـتی خانـواده هـا را سسـت نمـوده اسـت. در زمینـه هـزاران مـورد دیگـر نیـز اسـت کـه بایـد عنـوان شـود بـه گونـه مثـال یـک مـورد را بیـان کردیـم .بهـتر اسـت چنیـن رسـم ورواجهـای پـوچ ومیـان تهـی را نادیـده گرفتـه بـا تفکـر وتدبـر راه هـای بهـتر را گزید،بـزرگان خانـواده هـا ، بـزرگان قـوم ، علـمای دیـن وملاامامـان مساجد ومیدیـا هـا در زمینـه تلالـوی اذهـان عامـه مسـئولیت و رسـالت ایمانـی و وجدانـی دارنـد تـا از طـرق مختلـف مـردم را در روشـنی قـرار داده تـا باشـد زیـر بـار ایـن گونـه فشـار هـای خرافاتـی تحـت عنـوان رسـم و رواج و...قـرار نگیرنـد و از بعـد دیگـر اینکـه الحمدللـه شـکر جامعـه مـا اسـلامی اسـت. در کجـای موازیـن واحـکام اسـلامی چنیـن راهکارهایـی وجـود دارد کـه بـه نـام سـیالی وشریکـی خانـواده بـرادر مسـلمانت را از بعـد اقتصـادی متـضرر بسـازی. اینگونـه اندیشـه هـا

ص۶

## بررسی نقش پالیسی و ستراتیژی در افغانستان



محمد بسیم گران

حقیقت مسلم است کـه کشـور عزیـز مـا افغانستان دارای نظـام مشخص بوده و مبنـای آن معتقـدات و احـکام دیـن مقـدس اسلام است. پالیسی‌سازی در افغانسـتان بـا توجـه بـه تاریـخ پرتنـش و تحـولات سیاسـی پیچیـده ایـن کشـور اهمیـت ویـژه‌ای دارد. ایـن مقالـه تأثیـر پالیسـی‌ها بـر وضعیـت اجتماعـی، اقتصادی و سیاسی افغانسـتان را بررسی می‌کنـد و بـه تحلیـل چالش‌هـای عمـده‌ای ماننـد فسـاد و بحران‌هـای انسـانی می‌پـردازد. همچنیـن، سـتراتیژی‌های مختلفـی کـه بـرای تقویـت حکومـت، توسـعه اقتصـادی و ثبـات اجتماعـی اتخـاذ شـده‌اند، مـورد بررسـی قـرار می گیرنـد. پالیسی‌سـازی در بخش‌هـای عمومـی بـه منظـور تعییـن اقدامـات مناسـب و ایجـاد اصلاحـات در چارچـوب قانـون انجـام می‌شـود. در نهایـت، تحقیـق بـه تحلیـل عواملـی کـه منجـر بـه تغییـرات در پالیسـی‌ها و سـتراتیژی‌ها شـده‌اند، پرداختـه و بـه درک بهـتری از آینـده افغانسـتان و مسـیرهای ممکـن بـرای توسـعه و ثبـات آن دسـت می‌یابـد.

اصطلاحـات کلیـدی : پالیسـی، پالیسـی عامـه، سـتراتیژی، افغانسـتان

امـروزه نظام‌هـای حقوقـی، شـامل نهادهـا، سـازمان‌ها و قواعـدی هسـتند کـه بـرای تحقـق اهـداف و سـاماندهی امـور جامعـه به‌طـور هماهنـگ عمـل می‌کننـد. یکـی از چالش‌هـای اساسـی دولت‌هـا، عـدم کارآیـی و کیفیـت پاییـن خدمـات عمومـی اسـت کـه موجـب فاصلـه گرفتـن دولـت از مـردم می‌شـود. پالیسـی‌های عمومـی نقـش زیـادی در تنظیـم روابـط اجتماعـی دارنـد و بـرای تحقـق اهـداف جامعـه ضروری اسـت. مدیـران موفـق بایـد عـلاوه بـر توجـه بـه اهـداف فنـی و اقتصـادی، بـه منافـع عمومـی و پالیسـی‌های عامـه توجـه کننـد. در عـصر حـاضر، مدیریـت سـتراتیژیک به‌ویـژه در راسـتای پیـش بینـی آینـده و حـل مشـکلات اساسـی جوامـع، اهمیـت ویـژه‌ای دارد و بـه یکـی از موضوعـات برجسـته تبدیـل شـده اسـت.

مبحث اول – نقش های پالیسی عامه

پالیسـی‌های عامـه در جامعـه نقش‌هـای متعـددی دارنـد کـه مهمتریـن آنهـا عبارتنـد از:

۱. راهنـمای عمـل: پالیسـی عامـه بـه ادارات و نهادهـا کمـک می‌کنـد تـا در تصمیم‌گیری‌هـا و انتخـاب اقدامـات، جهت‌گیـری مشـخصی داشـته باشـند.

۲. هماهنگـی: پالیسـی‌های عامـه موجـب هماهنگـی میـان ادارات و نهادهـای مختلـف شـده و از تکـرار فعالیت‌هـا و هـدر رفتـن منابـع جلوگیـری می‌کننـد.

۳. تحفـظ منافـع عامـه: پالیسـی‌های عامـه نماینـده منافـع عمومـی هسـتند و در نظـر گرفتـن مصلحـت عمومـی بـرای حـل مشـکلات جامعـه ضروری اسـت.

٤. کنـترول اقدامـات: پالیسـی‌ها در ارزیابـی و نظـارت بـر اقدامـات عمومـی نقـش دارنـد.

۵. وضاحـت قوانیـن و مقـررات: پالیسـی‌های عامـه مبنـای تنظیـم و تفسـیر صحیـح اصـول و ضوابـط قانونـی جامعـه هسـتند.

در مجمـوع، پالیسـی‌های عامـه بـه بهبـود هماهنگـی، حفـظ منافـع عمومـی و تسـهیل درک قوانیـن و مقـررات کمـک می کننـد.

مبحـث دوم - نقـش کلیـدی پالیسـی ها و سـتراتیژی هـای دولت

پالیسـی‌های عمومـی دولـت به‌عنـوان ابزارهایـی بـرای هدایـت و هماهنگـی فعالیت‌هـای مختلـف در جامعـه عمـل می‌کننـد. ایـن پالیسـی‌ها می‌تواننـد تصمیم‌گیری‌هـا را بهبـود بخشـیده و از هـدر رفـت منابـع جلوگیـری کننـد. همچنیـن، پالیسـی‌ها

ص۶

# له ګناهونو ځان ساتل مو په غوره اخلاقو عادت کوي



نعمت الله

غـوره اخـلاق د انسـاني ژوند بنسـټ جوړوي. پردې اسـاس د انسـاني ټولنې هر وګړي ته ښـايي چې پـه هراړخیزه توګه ځان د غوره او ښـو اخلاقو پر ګاڼه سـمبال کړي. لکه څنګه چې د اسـلام سـتر پیغمبر جناب حضرت محمد صلی الله علیه وسلم د لوړو او سپيڅلو اخلاقو خاونـد و او د هغه جنـاب د اخلاقو په اړه قرانکریـم فرمايي: ژباړه: ای پیغمبره! یقیناً ته د لـوړو اخلاقو درلودونکې یې. نو موږ چې د هغه سـتر پیغمبر امتیان یو بایـد تل د هغه په نقش قـدم باندی ولاړ شـو او دهغه د لوړو او سپیڅلو اخلاقو پیروی وکړو، له شـک پرته چې اخلاق په انسـاني نفس که هغه فطری(طبیعی) قوه ده چې په ډېره اسـانی سره ښـه یا بد عملونه ورڅخه صادريږی. که ښه عملونه ورڅخه صادر شی د ښو اخلاقو او که بد عملونه ور څخه صادر شی د بد خوی په نامه یادیـږی، لکه څنګه چې دحضرت محمـد(ص) په یوه حدیـث شریف کې ګناهونو تـه نـاوړه اخلاق(بدخویونه) ویل شوی دی او ورڅخه معلومیږی چې د انسـان په فطرت(طبیعت) کې دا توان شته چې ښه عملونه یا بد عملونه وکړی. اسلامی شریعت دا څرګنده کړی ده ، چې د اسلامی فرایضو ادا کول او له ګناهونو څخه ځان سـاتل انسـان په ښو خویونو عادت کوی، همدارازله الله تعالی څه ویره لرل د ښـو خویونو اساس ګڼل شوی دی، نو د یوه مسلمان غوره او ښه اخلاق دادی چې له الله تعالی څخه ویره ولری د هغه د احکامو پیروی وکـړی او له ګناهونو څخه په ځان سـاتنه بریالی شی. نو ښه خویونه لکه حلم، تواضع، صله رحمی، د مسئولیت احساس، محبت، شجاعت، سـخاوت او نور پـه کې وده کـوی او شخصیت یې له بدو خویونو لکه: کېنې، دښـمنی، بخل، غیبت، خیانت، حرص او داسـی نورو څخه خونـدی پاتی کیږی.

همداشـان موږ د نړی ټول مسلمانان دنده لرو چې پر الله تعالی ایمان ولرو او د ایمان هدف مـو دادی چې باید زمـوږ زړونه یوازی په یوه الله تعالـی پوری تړلی وی او اراده او عمل مو د الله تعالی له امرونو سره موافق وی، همداراز په ټولو عبادتونو کـې زموږ د زړه د پاکوالی اثر پروت دی د مثال په توګه لمونځ له الله تعالی څخه د ویـری خوی په موږ کې زیاتوی، نو موږ له بدو او بی حیا کارونو څخه منع کوی، زکات زموږ زړونه له حرص، بخل او بی رحمی څخه پاک ساتی، روژه په موږ کې د حلم او حوصلی خوی پیاوړی کوی او دفقیرانو له حال څخـه مو خبروی، لنډه دا چې اسـلامی عقیده او عبادتونه هر یو زموږ د زړونو په پاک ساتلو کې اثر لری او دا زموږ اسـلامی او انساني دنده ده چې الله تعالی په یووالی سره وپیژنو او امرونه یې پر ځای کړو تر هغوچې زموږ باطنی شخصیت پاک او پیاوړی شی اوهمداراز له روانی او روحی ناروغتیا څخه خوندی شو. همداشان له اخلاقی ناروغتیاوو لکه: کبر، بخل، حرص، حسد، خیانت او داسی نورو څخه مو زړونه پاک او خوندی وی، په یوه مبارک حدیث شریف کې راغلی دی(په بدن کې د غوښـی یوه ټوټه ده که هغه اصلاح شـی، نو ټول بدن به اصلاح وی اوکه فاسده شی، نو ټول بدن ورڅخه فاسدیږی او دا ټوټه زړه دی) نو باید زړونه او ذهنونه موله بدو فکرونو او خویونو څخه پاک وی تر هغـو چې مو عملونه اصلاح شـی. همداشـان د ټولنې د غړیو حقوق هم د څېړونکو لـه نظره په دوو ډولونو ویشل شوی چې په لاندی توګه یې یادونه کوو:

الف: د مسلمانانو حقوق.

ب: د ټولنې د نورو غړیو حقوق.

الف: د مسلمانانو حقوق: هر مسلمان په بل مسلمان باندی ځینی ځانګړی حقوق لـری دا حقوق د خپلوی پـه اصل نه دی ولاړ، بلکـې ددی حقونـو د اثبات لپاره یوازی د دین یووالی کفایت کوی، ځکه چې پر مسـلمان خپل دین ګران دی، نو د خپل دین خاوندان هم ورباندی ګران وی او دهغوی خوشـحالی او سـوکالی باید خپله سوکالی وګڼی، دهغو غم او خپګان خپل غم او خپګان وبولی، مسـلمان چې کوم شی د خپل ځان لپاره ښه ګڼی د خپل مسلمان ورور لپاره دی هم وغواړی او څه چې ځان ته نه خوښوی، د بل مسلمان لپاره دی هم نه خوښوی، دا خصلت د مسلمان لپاره د ایمان لویه نښـانه ګڼل شوی ده، په یوه مبارک حدیث شریف کې راغلی چې یو مسلمان په بل مسلمان باندی حقونه لری چې ځینی یې په لاندی ډول دی:

یو له بل سره نیکې کول، د ګناهکار لپاره له الله تعالی هدایت او مغفرت غوښـتل، هغه څوک چـې له تا سره یـې بد کړی وی ورسره ښـه کول، دیو مسـلمان د بل مسـلمان سره کینه نه لرل، له محتاج سره مرسته کول، د مشر مسلمان درناوی کول، پر کشر مسـلمان باندی شـفقت کول، له خپل بل مسـلمان ورور سره خیانت نه کول، بل مسلمان ورور په بده نه یادول، د بل مسلمان غیبت نه کول، پر بل مسلمان باندی بد ګمانی نه کول، په غم او ښـادی کې له بل مسلمان سره ځان شریک ګڼل، مسلمان جنګ ته نه هڅول، بلکې تر منځ یې سوله غوښتل.

ب: د ټولنې د نورو افرادو حقوق: مسلمان دینی او عقیدوی دنده لری چې د ټولنې له ټولو غړیو سره که څه هم اسلامی عقیده ونه لری لانـدی امرونه مراعات کړی:له دوی سره پـه معامله کې خیانت نه کول، په عدلی قضایاوو کې ورسره عدالت کول، په مال او ناموس یې تیری نه کول، ددوی په عقیدوی امورو باندی چې د اسـلامی شریعت سـپکاوی په کې نه وی تیری نه کول، له دوی سره به داسـی کړنه کیږی چې اسلامی شریعت سره مخالفت په کې نه وی.همداشـان په اسلامی ټولنه کې یو له بل سره پر مرسته کولو هم ډېر ټینګار شوی دی، ځکه د مسـلمانانو ټولنه لکه یو جسد داسی ګڼل شـوی ده او افراد یې د جسد د غړیو حیثیت لری، کله چې یو غړی دردمن شی ټول ځان ورسره نا ارامه کیږی، نو مسلمانان په ټولنه کې په غم او ښـادی کې سره شریک دی او دنده لری چـې خپل ځان د ټولنې د افرادو په غم او خوشحالی کې شریک وګڼی، د ټولنې له محتاج فرد سره مرسته وکړی، که چېری د مرسـتی کولو توان نه لـری، نو د هغه په درد کـې دی ځان شریک وبولی او په ډېرو خوږو خبرو دی ورته تسلی ورکړی او په دی دی پوه کړی چې د مسـلمانانو درد شریک دی، هغه مسـلمان چې نورو ته یې د مرسـتی لاس اوږد کړی وی، الله تعالی د ده مرسـتندوی دی، دا مطلب په لانـدی مبارک حدیث شریـف کې بیان شـوی دی :( تر څو چې یو مسـلمان د بل مسـلمان ورور په مرسته کې وی الله تعالی د هغه مرستندوی دی). قران عظیم الشان لارښوونه کړی ده چې (هره نیکې لس چنده ثواب او اجر لری) نو د مرستی کولـو ثواب لږ تر لږه لـس چنده دی، دا د یو مسـلمان نیکبختی بلل کیږی چې د نورو مرسـتی ته یې لاس اوږد نه وی او له نورو سره په مرسته کولو بوخت وی، نو نیکمرغه به وی هغه انسـان چې دی په لومړی قـدم کې د پـاک خدای(ج) عبادت په ښـه توګه ترسره کړی او همدا راز خپل کارونه، خپـل ورځنی کړه وړه اوچال چلند هم ټول د اسلامی شریعت او اسلامی غوره اخلاقو په نظر کې نیولو سره سمبال کړی، چې دا واقعاً هم دنیاوی ګټه له ځانه سره لری او هـم اخروی ، پردی اساس پتمنو هیوادوالو! بی دریغه هڅه، هاند او کوښښونه وکړئ چې له دې دواړو ګټو څخه ځانونه برخمن کړئ ترڅو دنیا اوعقبا دواړه موښکلی او ښایسته شي.

# لوېدلي ستوري

## شپېتم ستوری

لیکوال: امین وردګ

**شهید فضل الخالق**
**نوم: فضل الخالق**
**د پلار نوم: محمدجان**
**ځای: افغانستان، وردګ، سیدآباد، تنګي دره، لاچخېل.**
**عمر: (۴۷) کاله**
**مدني حالت: متأهل**

یتیمان: د یوې مېرمنې ترڅنګ یې پنځهٔ اولادونه یتیمان شوي چې دوه پکې لویان اودرې نور یې ماشومان وو، کشر زوی یې (عابدالرحمن) هغه مهال درې کلن ؤ چې د پلار له مینې محروم شو.

زده کړې: د جوماتـ له امام څخه فقط دیني اساسات.

د شهادت نېټه: (۱۳۹۰/۵/۱۴) هجري لمریز کال.

د شهادت لامل: د ناټو اشغالګرو ځواکونو شپنۍ وحشي چاپه.

د شهادت ځای: خپل کلی او خپل کور، د اور پهٔ خونه کې د تنارهٔ غاړه.

مزار: پهٔ خپله پلرنۍ هدیره کې. کیسه کوونکې: د شهید



کونډه.

راسره مل کسان: رفیع الله او سید حبیب.

مکمله کیسه: زویه ماسخوتن چې د هلکانو پلار لاړو فصل (کرونډې) ته او اوبهٔ یې لګولې (زموږ اوبهٔ خو پهٔ نوبت وې، کله د شپې نوبتونه راځي او کله هم د ورځې) څهٔ کم لس بجې وې چې لاسي بجلۍ پهٔ لاس کې بله کور ته راغی، ماته یې وویل چې لږ د ښځلو اوبهٔ خو راکړه تږی یم! ما چې اوبهٔ ورته را واخیستې او هغه یې و ښځلې نو یې راته وویل چې زهٔ بېرته ځم پټي ته، خو فکر کوم چې نن د ملا روزي دین (رازالدین) د زامنو پر کور چاپه ده، له دې خبرې سره سم زهٔ اوچته لاړمه صندوق ته او پهٔ کور کې مو چې دوولس زره روپکۍ (افغانۍ) لرلې ترڅو هغه پټې کړم او دهٔ غوښتل بېرته لاړ شي فصل ته چې رښتیا هم چاپه شوه او کافران رانږدې شول، دی زړهٔ نازړهٔ غونډې شو او ویې ویل چې هلته مې پر پټي اوبهٔ ایښې او دلته دا غموهلې چاپه شوه، اوس حیران یم چې وکړم څهٔ؟ ما ورته وویل چې پرېږده یې سرېه پهٔ اوبو پسې دې بلا شي، اوس بهٔ دې خدای مکړه دا بې ستړګو وولي ځکه چې دوی خو تور او سپین نهٔ پېژني! لږ وروسته مو چې کتل یو کس پر بام را واوښت او زموږ د سرای عمومي دروازه یې هغو نورو ته ورخلاصه کړه، کتل مو چې

یو غوررر شو او ډله کافر امریکایان مو کور ته رانوتل، خو هر سړی بهٔ یې چې لیدلو نو بهٔ یې د ټوپک خوله ورته سموله او همدا بهٔ یې ویل چې ((شور و نخورئ!)) ما پهٔ بیړه خپل مشر زوی (حبیب الرحمن) چې هغه مهال د دوولسو کالو ؤ له لاسه ونیو چې د دوی را پام شو، نو یې رامنډه کړه او زهٔ یې تر کونډاغو لاندې کړمه او داسې یې ووهلم زویه چې اوس هم تروې (شلومبې) نشم څښلی ځکه چې برېښن برېښن مې کوي.

له دوی سره ښځې هم وې! نو یوه رامخته شوه او موږ یې تولې تلاشي کړو، بیا یې له کوره و ایستو او تر دریو بجو یې دباندې پهٔ توره تیارهٔ کې کېنولې وو او دوی مو پهٔ کور کې تلاشۍ کولې، خو داسې تلاشیاني نهٔ وې لکه تلاشي! بلکې ټولې غوټې یې پهٔ برچو وهلې وې، د ناوې المارۍ یې ماته کړې وه، د کور نور سامانونه او لوښې مو یې هم زیاتره مات کړي وو او موټرسیکل ته مو یې اور ورکړ او پاک یې وسوځولو؛ زویه! توشکې، بالښتونه او حتی بړستنې یې لا پهٔ برچو راته وهلې وې! ورکوه یې زویه امریکایان نه ځناور راغلي وو؛ موږ خو لومړۍ جامې پهٔ دسمالونو کې غوټه کوو بیا یې پهٔ صندق کې ږدو، نو چې هر دسمال دوې درې برچې خوړلې وي خاورې بهٔ جامې روغې پکې پاتې شي!؟ جامې خو یې ټکه توره بلا پسې! هغه د شپې وحشت، ډار، منډې، وهل ټکول او ویشتل یې بد وو؛ موږ ورته کتل چې د هلکانو پلار یې تر لغتو او سوکانو لاندې کړ او ټوله شپه یې ووهلو، درې بجې چې شوې نو زموږ یوه وړوکې خونه ده (اوس یې درته ښیم!) لومړۍ یې هغې ته ور کش او بیا یې پسې ضربه کړ؛ واسکټ یې پر سوپه پروت ؤ او پکول د ونې بېخ ته.

حبیب الرحمن زوی مې یې هم دومره راته ووهلو چې تر اوسه لا کار نشي کولی او پر بلوس یې پهٔ سره خط (قطع) ور لیکلي وو.

زما او د هلکانو د پلار ټیلفونونه یې له ځانو سره یوړل، مګر (څهٔ دروغ درته ووایمه زویه!) هغه پیسې یې نهٔ وې وړې.

کله چې دوی ورک شول، نو موږ بیا کور ته راغلو چې لږ وروسته مې نږور راته وویل چې ابۍ! پهٔ خونه کې سړی پروت دی! زهٔ چې ورغلم او د غموهلې رادیو بالتۍ مې ور رڼا کړه، ګورم چې د هلکانو پلار دی، کولمې یې د مستو پر دېګونو سرېښن وې او پر دېوالو یې هم د ګوتو څرښندې ښکارېدلې چې وهلی او بیا یې پسې ویشتلی ؤ، هرې خوا ته یې د وینو ځاځکي باد وو؛ زما له همغې شپې را هیسې له رادیو څخه کرکه کېږي! خو جالبه دا ده چې هغه وینې یې اوس هم پر غولي ښکارېږي! دا دی ګوره څو کاله یې ووتل! مګر چې هر څهٔ پرې وکړو هغه ځای تل غوړ او لوند وي، بالکل نهٔ ورکېږي! کنه یو وار مو د سیمېنټو پلستر هم ورکړ خو بیا هم ورک نشو.

د دغهٔ کلي خلک دې خیر یوسي، ټول ماته د مور پهٔ سترګه ګوري او زهٔ هم پهٔ شپه او ورځ د دوی خدمت ته ولاړه یمه؛ ښځو ته یې ستنې (طبي سورنجونه) زهٔ لګوم او سیروم هم زهٔ ورته بندومه، نور مې هم چې هر څهٔ پهٔ وس کې وشي نهٔ یې ترې دربغوم، حتی زړهٔ مې غواړي چې کله مړه شمه همدلته مې خښه کړي او سجاوند ته مې یو نسي، زما لاچخېل ډېر خوښ دي، خدای دې آباد لري؛ دا درې بچیان خو مې ماشومان وو، نو چې کله یتیمان شول بیا د هلکانو ترهٔ (عبدالله جان) یوه مېړه راوسته او پهٔ دروازه کې یې راته حلاله کړه، راته ویې ویل چې ورېنداري! دا مې ستا د یتیمانو لپاره حلاله کړه! نور هم چې هر خدمت زهٔ کولی شم او پهٔ وس کې مې وي ځان بهٔ دربغ نهٔ کړم ان شاءالله، هغه نیکي مې یې نهٔ هېرېږي زویه.

کله چې کیسه ختمه شوه او موږ له کوټې راووتو، نو ما ابۍ ته وویل چې کهٔ د شهید د شهادت ځای را وښیې ډېره بهٔ ښه شي؟ دې وویل بیخي سمه ده زویه، خې راځئ راپسې! کله چې د کور دننه سرای ته ننوتو، نو ابۍ تر مخ شوه او موږ درېواړه ور پسې، سیده یې بوتلو د اور همغې وړوکې خونې ته چې خاوند یې پکې شهید شوی ؤ، د خونې ور ډېر ټیټ ؤ او خونه هم له پنځه نیم الی شپږ متره مربع زیاته نهٔ وه، هلته یې د وینو ځای را وښود، ریښتیا هم چې لوند او لږ غونډې غوړ معلومېدلو، زهٔ ډېر ورته ځیر شوم چې ممکن دا لوندوالی د اوبو وي! مګر مور او زوی دواړو قسمونه واخیستل چې له همغه راهیسې دا ځای همداسې لوند ښکاري، یعنې شاوخوا دوولس کاله وتلي وو! یقیناً جالبه وه.

د شهید کونډې پهٔ آخر کې دا هم وویل چې زما د خاوند یوازنی ارمان بهٔ دا ؤ چې فقط اولادونه مو پهٔ نس ماړه او کندو مو له اوړو ډک شي، خو تر پایه یې خپل آرمان پوره نشو کړای.

# بـیعت او اطاعت

**خالق یار احمدزی**

مسلمانه ټولنه د بیعت او اطاعت پهٔ نامه دوه کلمې لري چې هم د ټولنیز ژوند رفاه پورې تړلې او هم د فردي ژوند ښګینې پهٔ کې نغښتل شوې دي. کهٔ پهٔ ریښتوني توګه خلک د خپل رهبر او لارښود سره کړي بیعت ته ژمن او مطیع پاتې شي، نه یواځې به یې دنیوي ګټې پهٔ برخه وي، بلکې له ابدي سعادت او نیکمرغیو به هم برخمن وي.

موږ دلته پهٔ خلاصه توګه د دواړو تشریح کوو:

بیعت پهٔ لغت کې د بیع او ژمنې کولو پهٔ معنی سره راځي، پهٔ بیعت کې هم د خپل ځان تبادله \بیع ده، بیعت اخیستونکي ته ټاکلو اصولو ته پهٔ ژمنتیا سره؛یانې بیعت ورکوونکی له هغه چاسره چې بیعت ترې اخلي، د خپلې تسلیمي عهد او پیمان کوي، چې د ټولو اوامرو به یې اطاعت کوي.

پهٔ ساده ټکو یې کهٔ ووایو بیعت له خلیفه یا امیر سره د اطاعت او وفادارۍ هغه تړون ته ویل کیږي چې له مخې یې یاد کس د شریعت له احکامو سره سم د ده د اطاعت کولو ژمنه ورکوي. مولانا خطابي صاحب د بیعت د اقسامو پهٔ تشریح کې وایي:

بیعت پهٔ ۴ ډوله دی؛

۱_ د ایمان بیعت: هغه بیعت چې له رسول الله سره بهٔ خلکو د اسلام راوړلو پر مهال کاوه چې نور بهٔ له شرک او کفره لاس اخلي او د اسلام قوانینو ته بهٔ سر ټیټوي.

دا له ټولو لوړ او د سترې مرتبې بیعت دی. الله ج وایي [الممتحنة]

۲_ د خلافت یا سمع او طاعت بیعت: هغه بیعت چې صحابه کرامو بهٔ له رسول الله ص سره کاوه چې دهغه د هر امر منلو ته بهٔ غاړه ږدي او ژمنه بهٔ یې ورکوله چې پهٔ سختي او اسانۍ کې بهٔ یې ترڅنګ وي.

۳-د ارشاد بیعت: هغه بیعت چې صحابه کرامو رض بهٔ له رسول الله سره د ګناهونو پهٔ ترک کاوه او اوسني دور کې یې هم مریدان له خپل مرشد سره کوي او مرشد یې پر دې ژمنه ترې اخلي چې له ګناهونو بهٔ ځان ساتي.

الله ج فرمایي: ترجمه: بیشکه هغه کسان چې له تا سره بیعت کوي پهٔ تحقیق سره دوی له الله تعالی سره بیعت کوي.

پهٔ دې آیت کې پهٔ صراحت سره ثابته شوه چې له رسول الله ﷺ سره بیعت شوی او دا بیعت پهٔ اصل کې له الله تعالی سره بیعت دی، نو ځکه خو هم د طریقت مشائخ چې له کوم چا سره بیعت کوي، یوازې هغه بیعت تازه کوي کوم چې موږ پهٔ یوم المیعاد کې د دې سوال⊠ الست بربکم⊠ پهٔ ځواب کې ⊠ بلیٰ ⊠ ویلي وو.

همدارنګه د بیعت اثبات پهٔ ډېرو احادیثو مبارکو کې هم شوی دی چې موږ بهٔ یې مشت نمونه خروار ذکر کړو.

لومړی: ترجمه: رسول الله ﷺ فرمایي: له ما سره پهٔ دې بیعت وکړئ چې تاسو بهٔ له الله تعالی سره شریک نه نیسئ، غلا بهٔ نه کوئ، زنا بهٔ نه کوئ.....

د حدیث پهٔ آخر کې راغلي: (فبایعناه) یعنې موږ بیعت ور سره وکړو.

(اخرجه البخاري في صحیحه في کتاب الایمان و اخرجه مسلم والترمذي والنسائي کما في الترغیب والترهیب جـ ۲ صـ ۴۱۵)

بیعت الارشاد پهٔ خپله دوه ډوله دی

الف: جمعي بیعت

ب: افرادي بیعت

جمعي بیعت پهٔ لاندې حدیث ثابت دی:

(ج ۱ ص ۱۹)

یعنې: مونږ له رسول الله ﷺ سره ناست وو، نو رسول الله ﷺ وویل: آیا پهٔ تاسو کې د اهل کتابو څخه څوک شته؟ موږ وویل: نه یا رسول الله ﷺ نو د دروازې د بندیدلو امر یې وکړ او ویې ویل: لاسونه مو پورته کړئ او ووایئ: لا اله الا الله موږ لاسونه پورته کړل او لا اله الا الله مو وویل، نو بیا رسول الله ﷺ پورتنۍ دعا وکړه او صحابه وو ته یې د جنت زیری ور کړو.

ب: افرادي بیعت:

افرادي بیعت ته هم یو حدیث ذکر کوو:

(رواه الطبراني والبزار باسناد حسن)

یعنې رسول الله ﷺ له حضرت علي رضی الله عنه څخه د لا اله الا الله ویلو بیعت واخیست او طریقه یې داسې و ته وښودله چې سترګې پټې کړه. لومړی یې زه درې ځلې وایم او بیا یې ته ووایه، نو همداسې یې وکړل.

زموږ مشائخ هم له خپلو مریدانو څخه پهٔ دې توګه بیعت اخلي او له ګناهونو څخه د نصوحا توبې پر ایستلو، د توحید کلمې د ذکر، د ښې غوښتنې پر دعاګانو او.... لارښوونې ورته کوي او بیا ترې د تل لپاره دا بیعت اخلي چې د الله تعالی له نافرمانۍ بهٔ ځان ساتي.

۴-د جهاد بیعت: هغه بیعت چې صحابه کرامو له رسول الله ص سره کاوه چې د ژوند تر آخرې سلګۍ بهٔ یې ترڅنګ ولاړ او د کفارو اومشرکینو پر وړاندې بهٔ جنګیږي. (۱۳)

د خلیفه یا امیر ټاکلو لپاره بیعت پهٔ دوه ډوله راغلی دی.

۱- ځانګړی بیعت: چې د مشرانو او د خلکو د استازو له خوا تر سره شي.

۲- عام بیعت: چې ټول ملت پهٔ کې برخه واخلي او له خپل مشر سره یا پهٔ لاس یا هم بالواسطه بیعت کوي.

نو د امیر ټاکلو ټوله پروسه هغه مهال شفافه کیدای شي چې د هوښیارو، علماوو او د اهل الرأی خلکو پهٔ هر اړخیزو مشورو سره یو څوک د هغه ټول اهلیت او وړتیا ته پهٔ کتو سره انتخاب او وټاکل شي.

نو له همدې کبله بیا دغه ډول بیعت کې ژوند کول هم خوند لري او هم له ثوابونو سره مل وي.

رسول الله ص فرمایي: رواه الترمذی) یعنې کله چې ستاسې واکمنان ستاسې له ښو خلکو وي، ستاسې شتمن خلک سخیان وي او ستاسې کارونه د مشورې پهٔ اساس مخته ځي؛ نو د ځمکې مخ تاسو ته د ځمکې له ګېډې نه بهتر دی.

علامه ابن قدامه رح فرمایي: (من اتفق المسلمون علی امامته وبیعته ثبتت امامته و وجبت معونته، «المغني لا بن قدامه»). د چا پر حکومت او بیعت چې مسلمانان اتفاق وکړي؛ نو د هغه حکومت ثابت او له هغه سره کومک واجب دی.

کله چې محمد ص وفات شو، نو د خپل ځای ناستي پهٔ توګه یې کوم کس ونه ټاکه او د امارت یا خلیفه د ټاکنې چاره یې د صحابه کرامو خپلمنځي انتخاب ته پرېښوده؛ د دغه ستر شخصیت له وفات وروسته مسلمانان پهٔ ثقیفه بني ساعده کې سره غونډ شول، انصارو او مهاجرو پهٔ خپل منځ کې پراخې مشورې وکړې او بالاخره له څو تنو پرته، ټول پهٔ اتفاق سره د ابوبکر صدیق رض پر خلافت سلا شول.

بخاري شریف وایي چې (فبایعه الناس) خلکو ورسره بیعت وکړ او ابي بکر یې خپل مشر وټاکه.

د بیعت څرنګوالی:

الموسوعة الفقهیة پهٔ ۹جلد او ۲۷۸ص کې لیکي: هر یو بیعت کوونکی باید هغه چا ته پهٔ خطاب کې ووایي چې د خلافت بیعت ورسره کیږي ((موږ له تاسره پهٔ دې شرط بیعت کوو چې عدل او انصاف بهٔ قائموې او د امامت پهٔ ټولو شرعي وجایبو بهٔ عمل کوې.))

لاس پهٔ لاس کې کیښودل ضرور نه دي، اګر کهٔ بیعت د رسول الله او خلفاء راشدینو پهٔ وخت کې لاس پهٔ لاس کیده، همدا راز له حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه سره د بیعت پر مهال حضرت عمر فاروق رضی الله عنه د مسلمانانو تر منځ پهٔ اختلاف ووېرېده او ورته ویې ویل: اې ابوبکره! لاس راکړه، هغه لاس ورکړ، ده بیعت ور سره وکړ، له هغه وروسته مهاجرینو بیعت وکړ، بیا انصارو بیعت وکړ.

د بیعت د ماتېدو سزا:

الحدیث. رواه البخاری کتاب الفتن باب من بایع رجلا لایبایعه الا للدنیا (۱۱۵\۱۱۵) کذا

ژباړه: حضرت ابوهریره رضی الله عنه وویل: رسول الله صلی الله علیه وسلم و فرمایل: الله جل جلاله بهٔ د قیامت پهٔ ورځ له درېوو کسانو سره هیڅ خبرې ونکړي او نه بهٔ یې ګناه وبښي، بلکې د دوی لپاره سخت عذاب تیار شوی دی، یو له دوی څخه هغه انسان دی چې د دنیوي ګټو د ترلاسه کولو پهٔ غرض له امام سره بیعت وکړي، کهٔ هغه ګټې ورته رسېدې، نو پهٔ بیعت وفا کوي او کهٔ پهٔ نظر کې نیول شوي ګټې نه ورته رسېدې، نو وفا نه کوي. رواه البخاری

همدا راز پهٔ یوه بل حدیث کې د بیعت ماتول له شرک وروسته ستر غدر او لویه ګناه بلل شوې ده

ژباړه: د حضرت نافع له حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهم څخه روایت دی، هغه وویل: ما له رسول الله صلی الله علیه وسلم، څخه واورېدل هغه وفرمایل: د قیامت پهٔ ورځ بهٔ د غدر بیرغونه (لوحې) ودرول شي، و بهٔ ویل شي دا د فلان غدر دی، پهٔ تحقیق له الله سره له شرک وروسته له ټولو، لوی غدر بهٔ د هغه چا وښودل شي، چې یوځل د الله او د هغه د رسول پهٔ لاره کې له چا سره بیعت وکړي، بیا هغه بیعت بیرته مات کړي.

اطاعت:

اطاعت د حکومتونو، خوځښتونو او ټولنې لپاره د بریا رمز دی

موږ کهٔ تاریخي پاڼې واړوو، یا تر سترګو لاندې لنډ تېر وخت ته کتنه وکړو، څرګنده به شي، چې د بریاوو یواځنی رمز چې ټولنې، بهیرونه، ډلې او خوځښتونه او آن حکومتونه یې له برکته د بریا تر پولو رسیدلي، هغه اطاعت (منل) و او هغه مهال لوی نظامونه نړیدلي کله چې د اطاعت ماده پکې له منځه تللې ده.

اسلامي نظامونه عموماً داسې دي چې ټیټ پوړي یې د مشر اطاعت او لوړ پوړي یې پهٔ ترحم، شفقت او مشورو مخته ځي.

الله ج هم د ژوندانه پهٔ مختلفو پړاوونو کې د ممکنه ستونزو د حل لپاره د اطاعت مادې ته اشاره کوي او فرمایي چې: « يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الْأَمْرِ مِنكُمْ ⊠ فَإِن تَنَازَعْتُمْ فِي شَيْءٍ فَرُدُّوهُ إِلَى اللَّهِ وَالرَّسُولِ إِن كُنتُمْ تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ ⊠ ذَٰلِكَ خَيْرٌ وَأَحْسَنُ تَأْوِيلًا» [نساء: ۵۹]

کله چې د نبوي دور غزواتو ته کتنه وشي او له هغه وروسته د واکمنو مسلمانو مشرانو د بریاوو رموز وڅېړل شي، څرګندېږي چې د نورو لاملونو ترڅنګ یې د بریا یو مهم عامل د اطاعت پهٔ زیور سنبالښت ؤ.

خو اطاعت لکه څنګه چې رسول الله ص ویلي چې: «انما الطاعة فی المعروف» یواځې پهٔ مشروع او روا (جائزو) چارو کې دی، کهٔ سر لښکر یا کوم بل مؤظف مشر د منکراتو د اقامې امر کاوه، نو هغه مهال ترې سرغړونه هم مهم اصل بلل شوې ده.

دا چې په اسلام **۶مخ**

**اسلام او د ټکنالوژۍ...**

د ټکنالوژۍ اعتیاد او د وخت ضایع کول

ډېر خلک له انټرنیټ، ویډیو لوبو او ټولنیزو رسنیو سره دومره بوخت شي چې د خپل وخت لویه برخه ضایع کوي. اسلام موږ ته د وخت ارزښت ښوولی او قرآن کریم د «وَالْعَصْرِ» (په زمانه قسم) په ویلو سره د وخت اهمیت روښانه کړی. مسلمانان باید هڅه وکړي چې له ټکنالوژۍ څخه په داسې طریقه استفاده وکړي چې د دوی د دیني او دنیاوي ګټو لپاره وي، نه دا چې یوازې تفریح او بېځایه مصرف ته وخت ورکړي.

د ټکنالوژۍ لپاره اسلامي معیارونه

د ټکنالوژۍ د کارولو لپاره اسلام یو شمیر مهم اصول وړاندې کوي:

۱- حلال او حرام ته پام، هره هغه ټکنالوژي چې د حرامو چارو لپاره وکارول شي، باید ترې ډډه وشي.

۲- اخلاق او رښتینولي، مسلمانان باید د ټکنالوژۍ له لارې دروغ، دوکه، یا فساد ته لمن ونه وهي.

۳- د وخت مدیریت، ټکنالوژي باید د ګټور کار لپاره وکارول شي، نه د وخت ضایع کولو لپاره.

٤- د علم زده کړه او وده، ټکنالوژي باید د دیني او علمي زده کړو د ودې لپاره وکارول شي.

٥- د ټولنې ښېګڼه مسلمانان باید د ټکنالوژۍ له لارې ټولنې ته ګټه ورسوي، لکه د تعلیمي پروګرامونو او خیریه کارونو پرمختګ.

اسلام د ټکنالوژۍ مخالفت نه کوي، بلکې د هغې د سمو استفادو لپاره اخلاقي چوکاټ ټاکي. ټکنالوژي که د دین د خدمت، د علم د زده کړې او د خلکو د سوکالۍ لپاره وکارول شي، نو دا د اسلام له نظره مثبت عمل دی، خو که چیرې ټکنالوژي د فساد، غیراخلاقي محتوا، یا د وخت ضایع کولو وسیله وګرځي، نو دا له اسلامي ارزښتونو سره ټکر لري. مسلمانان باید هڅه وکړي چې د ټکنالوژۍ له برکته خپل دین، علم او ټولنې ته ګټه ورسوي، نه دا چې زیان ترې وګالي.

**پروژه تاپی و منفعت ...**

_نخست افغانستان به نقطه اتصال کشور های آسیای مرکزی و جنوبی تبدیل خواهد شد.

_فرصت های شغلی برای هزاران جوان وکادر تحصیل کرده کشور به صورت مستقیم و غیرمستقیم فراهم خواهد گردید.

_بیش از چهارصد میلیون دالر سالانه در عواید ملی کشور افزوده می شود.

_افغانستان در دهه اول پنجصد میلیون متر مکعب گاز ، در دهه دوم یک میلیارد مترمکعب گاز و در دهه سوم یک ونیم میلیارد مترمکعب گاز ازاین پروژه دریافت خواهد کرد.

_بدونشک از مناطقی که این لوله عبور می کند تجارت رونق خواهد یافت.

_پروژه های بزرگ دیگر نیز در پهلوی این خط تطبیق وبه منصه اجرا قرار خواهند گرفت.

و......بنابرین نظر به اهمیت این پروژه ، تمام مردم افغانستان به ویژه شهروندانی که در مسیر این لوله گاز ودیگر پروژه ها موقعیت دارند،باید درتامین امنیت واستملاک ساحات پلانی کمک وهمکاری جدی نمایند تا این پروژه بزرگ وبا اهمیت که از هر لحاظ منفعت بزرگ اقتصادی وشغلی برای ما افغانها وکشور های منطقه دارد، به بهره برداری سپرده شود.

**رمضان؛ په سوداګرۍ...**

له اقتصادي اصولو سره سم عمل وکړي، ترڅو د ټولنې دننه د عدالت، ورورولۍ او همدردۍ احساس راولي. که هر فرد د خپلو عباداتو او فعالیتونو له لارې د ټولنیز انصاف، د غریبو د ملاتړ او د اقتصادي ستونزو د حل لپاره جدي ګامونه پورته کړي، نو د ټولنې د سوکالۍ لپاره به د دې مبارکې میاشتې برکتونه ښکاره شي. دا میاشت نه یوازې د فردي عبادت او روحانیت لپاره یو فرصت دی، بلکې د ټولنې د اقتصاد، عدالت او سوکالۍ لپاره هم یو بېساري موقع ده.په پایله کې د رمضان میاشت یو ځانګړی او روحاني فرصت دی چې مسلمانانو ته یوازې د فردي عبادت او روحاني پرمختګ نه بلکې د ټولنې د سوکالۍ، انصاف، همدردۍ او اقتصادي عدل لپاره هم ځانګړې فرصت ورکوي. په دې میاشت کې مسلمانان د روژې او عباداتو له لارې د خپل نفس تربیت کوي، اخلاقو ته وده ورکوي او په ټوله کې د ټولنې په ښې کولو کې همکاري کوي. دا میاشت د صدقې، زکات او فطرې ورکولو له لارې د غریبو د ملاتړ او د اقتصادي ستونزو د حل لپاره هم یوه مهمه دوره ده. سوداګرو ته هم د دې میاشتې په ترڅ کې له اسلامي اصولو سره سم د انصاف، صداقت او د نرخونو د کنټرول لپاره یو مهم فرصت ورکول کیږي، ترڅو هغوی له احتکار، بېځایه ګرانۍ او غیر منصفانه سوداګرۍ څخه ډډه وکړي او د ټولنې د سوکالۍ برخه شي.حکومت ته هم دا مسئولیت ورپه غاړه دی چې د رمضان په میاشت کې د غریبو طبقو د ملاتړ لپاره جدي تدابیر ونیسي. د فطرې او زکات په جمع کولو کې هم حکومت باید د اسلامي اصولو مطابق اقدامات وکړي ترڅو هغه پیسې په سمه توګه اړمنو خلکو ته ورسوي. حکومت باید د نرخونو د زیاتوالي د مخنیوي لپاره هم اقدامات وکړي، د احتکار پر ضد مبارزه وکړي او د اقتصادي ستونزو د حل لپاره اوږدمهالې پالیسۍ جوړې کړي. که هر فرد د خپلو عباداتو او فعالیتونو له لارې د ټولنیز انصاف، د غریبو د ملاتړ او د اقتصادي ستونزو د حل لپاره جدي ګامونه پورته کړي، نو نه یوازې د فردي ایمان پرمختګ رامنځته کیږي، بلکې د ټولنې د سوکالۍ، عدالت او اقتصادي پرمختګ لپاره هم مثبتې اغېزې څرګندیږي. د رمضان میاشت باید د ټولنې د ښه والي، عدالت او سوکالۍ لپاره د ټولنې دغړو ترمنځ همکارۍ وهڅوي، ترڅو هر مسلمان خپل کردار د ټولنې د ښې کولو لپاره ادا کړي.

**د جهادي تاریخ لیکنه ...**

مسئولیت دا دی چې د جهادي میراث د انتقال لپاره ځانګړي علمي، فرهنګي او تعلیمي پروګرامونه رامنځته کړي، ترڅو دا ارزښتونه راتلونکو نسلونو ته نه یوازې انتقال شي، بلکې هغوی یې د ساتنې، پیاوړتیا او د اسلامي نظام د بقا لپاره عملي هڅې هم وکړي. که دا میراث وساتل شي، نو راتلونکي نسلونه به خپل مسئولیتونه درک کړي، د اسلامي ارزښتونو په دفاع کې به ثابت قدم پاتې شي او د دښمن د هر ډول فکري او نظامي یرغل پر وړاندې به قوي دربېدلای شي.د اسلامي نظام تر سیوري لاندې د شهیدانو یاد د اسلام مبارک دین شهیدانو ته ځانګړی مقام ورکړی، ځکه هغوی خپل ژوند د الله تعالی د دین د لوړوالي، د حق د اقامې او د ظلم او طاغوت د لهمنځه وړلو لپاره قربان کړی وي. شهیدان د امت ویاړونه دي، هغوی د اسلامي ټولنې د سرلوړۍ او بریا هغه ستنې دي، چې د قربانیو، اخلاص او استقامت له برکته یې اسلامي نظامونه رامنځته شوي دي. له همدې امله، د اسلامي حکومتونو یو مهم مسئولیت دا دی چې د شهیدانو یاد تلپاتې وساتي، د هغوی کورنیو ته ځانګړې پاملرنه وکړي او د هغوی قربانۍ د ټولنې راتلونکي نسلونو ته انتقال کړي.اسلامي تاریخ ښيي چې د نبي کریم ﷺ له مبارک دور څخه تر نن پورې، مجاهدین او شهیدان د اسلامي ټولنې افتخار وو او د هغوی یاد تازه ساتل د مسلمانانو له ایماني وجایبو څخه شمېرل کېږي. الله تعالی فرمايي: (آل عمران: ۱۶۹)؛ یعنې، "تاسو مه ګڼئ چې هغه کسان چې د الله په لاره کې وژل شوي دي، مړه دي، بلکې هغوی ژوندي دي او د خپل رب له لوري روزي ورکول کېږي." دا آیت د شهیدانو عظمت او لوړ مقام څرګندوي او دا حقیقت ثابتوي چې هغوی ته ځانګړې الهي عزت ورکړ شوی.

د اسلامي امارت او هر اسلامي حکومت دنده دا ده چې د شهیدانو یاد نه یوازې په رسمي توګه وساتي، بلکې د ټولنې په هره برخه کې د هغوی قربانۍ وستایل شي. د شهیدانو د وینې برکت و، چې اسلامي نظام بیا تأسیس شو، نو اړینه ده چې د هغوی نومونه، کارنامې او ژوندلیکونه راټول او د یوه تاریخي، تعلیمي او عبرتناک میراث په توګه وساتل شي.همدا راز د شهیدانو کورنۍ باید هېڅکله یوازې پرې نه ښودل شي، بلکې د هغوی د قربانیو بدل کې باید ورته د اسلامي نظام تر سیوري لاندې پوره پاملرنه وشي. د اسلامي حکومت مسئولیت دی چې د شهیدانو کورنیو ته مالي، تعلیمي او ټولنیز ملاتړ برابر کړي، ترڅو هغوی ځان یوازې ونه ګڼي او د اسلامي ټولنې له خوا د قدر وړ وګڼل شي.

په همدې توګه، د شهیدانو یاد باید یوازې د ویناوو او غونډو تر حده محدود نشي، بلکې دا باید د ټولنیز شعور یوه برخه وګرځي. د تعلیمي نصاب، رسنیزو پروګرامونو، جهادي موزیمونو او تاریخي مستنداتو له لارې باید د شهیدانو نومونه ژوندي وساتل شي، ترڅو راتلونکي نسلونه د هغوی له قربانیو خبر شي، او د خپل دین، خپلواکي او اسلامي نظام د ساتنې لپاره متعهد پاتې شي. که موږ د شهیدانو یاد ژوندي وساتو، نو دا به زموږ د ملت د ایماني ځواک، ملي هویت او اسلامي ارزښتونو د دوام لپاره یوه پیاوړې ستنه وي.د جهاد او استقلال تر منځ اړیکه جهاد د اسلام له مهمو ارکانو څخه دی، چې د امت د عزت، خپلواکۍ او د اسلامي نظام د قیام لپاره اساسي حیثیت لري. په اسلامي تاریخ کې جهاد همیشه د استعمار، ظلم او طاغوت پر وړاندې د حق د قیام وسیله پاتې شوی. د افغانستان خپلواکي او د افغان ملت د آزادۍ نه ستړې کېدونکې مبارزه هم د همدې ستر حقیقت یوه برخه ده. د افغانستان تاریخ شاهد دی چې دلته هیڅکله ظلم، استبداد او پردی واک نه دی منل شوی، بلکې هر وخت د جهاد له لارې خپلواکي ترلاسه شوې.په ځانګړې توګه، د تېرو ۴۰ کلونو جهاد د افغانستان د استقلال، اسلامي نظام او ملي هویت د بقا لپاره له ټولو ستره مبارزه وه. د دې مبارزې برکت و، چې د استعمار ظالمانه نظامونه ړنګ شول، د یرغلګرو ځواکونه له دې پاکې خاورې ووتل او اسلامي نظام بیا تأسیس شو. دا مبارزه یوازې د وسلو جګړه نه وه، بلکې دا د عقیدې، عزت او خپلواکۍ لپاره یوه فکري او ایماني مبارزه وه، چې مجاهدینو د خپلې وینې په بیه وکړه.

د جهاد او استقلال اړیکه له دې ځایه څرګندیږي، چې خپلواکي هیڅکله د تسلیمۍ له لارې نه ده ترلاسه شوې، بلکې دا تل د قربانیو، سرښندنو او جهاد له لارې ترلاسه شوې. هر هغه ملت چې د جهاد له روحیې بې برخې شي، هغه یا د استعماري ځواکونو غلامي مني او یا د پردیو افکارو تر تأثیر لاندې راځي، خو افغان ملت تل دا ثابته کړې، چې خپلواکۍ ته د جهاد له لارې رسېږي، نه د تسلیمۍ له لارې.د استعماري ځواکونو پر وړاندې د افغان مجاهدینو مبارزه د عقیدې، هویت او ملي وحدت یوه پراخه مبارزه وه. هر ځل چې یرغلګرو هڅه کړې چې د افغانانو خپلواکي سلب کړي، مجاهدینو د جهاد له لارې د هغوی پلانونه شنډ کړي. د انګرېزانو، شورویانو او وروسته د نړیوال استعمار پر وړاندې د افغانانو جهاد دا حقیقت ثابت کړ، چې خپلواکي یوازې هغه ملتونه ساتلی شي، چې د جهاد روحیه ولري او د قربانیو لپاره چمتو وي.

نن چې اسلامي امارت د یو خپلواک نظام په توګه راڅرګند شوی، دا د هماغو جهادي قربانیو نتیجه ده. اوس دا د اسلامي امارت او ټول ملت مسئولیت دی، چې د جهاد او استقلال تر منځ دا نه شلېدونکې اړیکه راتلونکو نسلونو ته ورسوي، ترڅو هغوی خپل هویت، دیني ارزښتونه او ملي عزت وساتي. که دا اړیکه ژوندۍ پاتې شي، نو دښمن به هېڅکله ونهشي کولای چې زموږ د خپلواکۍ، اسلامي نظام او ملي وحدت پر وړاندې توطئې جوړې کړي.

**فرهنگ های ناپسند...**

و امیال به عنوان رسم و رواج کاملاً مردود است .پس بهتر است در کل رسم و رواجهای ناپسند را نادیده گرفته، دنبال این باشیم که چگونه راه های معقول دوستی وباهمی را در یابیم تا باشد درنهایت امر خوشی وسهولت را برای خود و هموطنان خویش به ارمغان آوریم.

**بررسی نقش پالیسی...**

با تأمین منافع عمومی و توجه به مصلحت عموم، به حل مشکلات جامعه کمک میکنند. در این راستا، آنها نقش مهمی در ارزیابی و کنترول برنامهها دارند و میتوانند راهنمایی برای تفسیر قوانین و مقررات باشند. در نهایت، پالیسیها به مدیریت ریسک و توضیح ضرورت تغییرات در راستای اهداف عالی کمک میکنند. ستراتیژیهای جامع نیز برای تطابق با شرایط محیطی و رقابت با دیگر سازمانها ضروری هستند. در نهایت پالیسی و ستراتیژی با هم پیوند نزدیک دارند> هر دو چهارچوب پلان یک اداره را مشخص میکنند. هر دو جهت دهنده و رهنمود دهنده بوده ، هر دو اساس پلان عملیاتی اند. هر دو رفتارها در داخل اداره را تنظیم نموده و هر دو تمام ابعاد مدیریت و اداره را متأثر می سازند. بناءً حکومت برای تبدیلی به یک نظام قانونمند و مسیریابی نیازمند به پالیسی و ستراتیژی است.

نتیجه گیری:

نظامهای حقوقی مجموعهای از نهادها، سازمانها و قواعدی هستند که بر اساس اصول خاص خود، به منظور تحقق اهداف مشخص، بهصورت یک منظومه هماهنگ و منسجم شکل میگیرند. در این راستا، پالیسی عامه بهعنوان اساس قانون، پایهگذار آن را تشکیل میدهد؛ زیرا پالیسی عامه در متن قوانین، مقررات، تصمیمات و اقدامات حکومت بیان میشود. به عبارت دیگر، قانون مجموعهای از قواعد و نورمهاست که روابط یا مناسبات خاص میان ارگانها و افراد را تعریف و تنظیم میکند و در این روابط، اصل بیطرفی را در نظر میگیرد و برای متخلفین مجازاتهای معینی را در نظر میگیرد. در حالیکه در پالیسی، تمرکز بیشتر بر نحوه جهتدهی تصمیمات و اقدامات خاص برای دستیابی به نتایج مطلوب است. از سوی دیگر، پالیسی به تدوین آینده توجه دارد. بهاینمعنی که وضعیت فعلی بهگونهای است که نیاز به تغییرات عمده دارد و از وضعیت موجود راضی نیستیم. بنابراین، هدف پالیسی این است که تفاوت بین آنچه که اکنون هست و آنچه که باید باشد، از میان برداشته شود. شکلدهی و اجرای پالیسی شامل برنامهریزی و تنظیم رفتارها است. پالیسی عامه در واقع یک شبکه روابط و تعامل بین ارگانهای مختلف حکومت، قوای اجرائیه، قضائیه، رسانهها و ... است. برای درک بهتر پالیسی، نکات زیر باید مدنظر قرار گیرند:

۱. پالیسیهای عامه هدفمند هستند؛ این پالیسیها برای دستیابی به اهداف خاص طراحی و اجرا میشوند و در واقع برنامههای حکومت را تعریف میکنند.

۲. پالیسیهای عامه نتیجه همکاری ارگانهای مختلف حکومت هستند. اگر این ارگانها با یکدیگر همکاری نکنند و هدف مشترکی را دنبال نکنند، فرآیند شکلگیری پالیسیها با مشکلاتی مواجه خواهد شد.

۳. پالیسی عامه در واقع انتخابها و اقداماتی است که حکومت بر اساس شرایط سیاسی و اجتماعی انجام میدهد. این پالیسیها معمولاً تحت تأثیر محیط خود قرار دارند و بر آن تأثیر میگذارند.

٤. پالیسیها و ستراتیژی های حکومتی زمانی موفق خواهند بود که عملکرد حکومت را به درستی هدایت کرده و هدفمند سازند. این پالیسیها باید دارای پشتوانه قانونی باشند و در صورت عدم تطابق با اهداف ملی، میتوانند نتیجه منفی داشته باشند. بنابراین، تدوین پالیسی در سطح رهبری خدمات عمومی بسیار حائز اهمیت است؛ زیرا آگاهی از این پالیسیها به مسئولان کمک میکند تا طرحهای پالیسی وزارتخانههای خود را بهدرستی تدوین کنند، موانع احتمالی را شناسایی نمایند و بهعنوان رهبران الگویی برای دیگران فراهم آورند. بهطور خلاصه، پالیسیهای عامه اصولی هستند که توسط مراجع ذیصلاح کشور وضع میشوند و بهعنوان الگو و رهنما، اقدامات و فعالیتهای مورد نیاز در جامعه را هدایت میکنند. در نهایت پالیسی عبارت از یک رهنمود جامع برای تصمیم گیری است. پالیسی دایره تصمیم گیری را مشخص نموده و تعیین میکند که چه تصامیمی باید گرفته شود و چه تصامیم نباید گرفته شود، بناءً پالیسی ها دارای پشتوانه قانونی بوده و دولت در مفهوم کلی یک نهاد قانونی پالیسی گذار عمومی است و از طریق قوانین، مقررات و ضوابط به تعیین خط ومشی عمومی می پردازد.

منابع و مآخذ :
۱.امیری، محمد کاظم،۱۳۹۶ ، پالیسی سازی، کابل: ناشر مؤسسه حمیده برمکی.
۲.رهنمود برای اشتراک کنندگان پالیسی ستراتیژی و رهبری، انستیتوت خدمات ملکی افغانستان کابل : ۱۳۸۸
۳.منیب، فرید احمد،۱۳۹۴ اداره پالیسی عامه، پوهنتون یومف سویس، کابل
٤.رهنمود آموزشی پالیسی عامه ستراتیژی و رهبری انستیتوت خدمات ملکی افغانستان کابل : ۱۳۹۱
٥.منیب، فرید احمد، ۱۳۹۵، مدیریت ستراتیژیک، کابل: ناشر پوهنتون یومف سویس.
٦.و رهنمود آموزشی، پالیسی عامه و حکومتداری خوب برای توانمند سازی مدیران ارشد، انستیتوت خدمات ملکی افغانستان کابل ۱۳۹۰
۷.حمیدی، خلیل الله ، ۱۳۹۴، مبانی سیاست گذاری عمومی، کابل: چاپ اول، انتشارات سراج.

**بیعت او**

کې روند اطاعت نشته، له همدې امله اړینه ده چې مشر خپل حکمونه په روښانه توګه خپل رعیت ته بیان او له اهمیته یې ښه واقف کړي ځکه چې له رانده اطاعت څخه د رضایت او خبریدو اطاعت بهتر او افضل ده . یوه روایت کې راځي چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم یوه صحابي خپلو تر لاس لاندې ملګرو ته اور بل کړ او له هغوی یې وغوښتل چې ځانونه ور وغورځوي ،خو عسکرو یې د دغه امر له منلو څخه ډډه وکړه ؛ کله چې رسول الله صلی الله علیه وسلم خبر شو، نو هغه د دې پوځیانو له خوا د خپل مشر بې اطاعتي وستایله او زیاته یې کړه چې : «لو دخلها ماخرج منها» (که دوی اور ته ننوتي وای، دوی به کله هم ترې راوتلي نه وای. -(روی علی ابن ابی طالب بخاری رقم ۴۳۴۰ باب انماطاعة فی المعروف)

همدا راز اطاعت په هغو مواردو کې هم ناسم کار بلل شوی چې هلته د یوه مشر مسئول امر د شریعت له حکم سره څرګند مخالف وي، بیا نو دلته هم لازمه ده تر څو د مسئول د پیروي پرځای، د شریعت د منصوصي احکامو لوری ونیول شي. ځکه چې د «لَاطَاعَةَ لِمَخْلُوقٍ فِي مَعْصِيَةِ الْخَالِقِ»حدیث محتوا هم همدا لارښوونه کوي.

د الله ج په قطعي اوامرو د صحابه کرامو تعمیل:

کله چې شراب په پوره ډول حرام شول الله تعالی وفرمایل: [المائدة: ۹۱] ژباړه: (نو آیا تاسو ځانونه له (شرابو) را ګرځوئ؟)

عمر رضي الله عنه چې دا آیت واوریده، ویې ویل: «بلې! موږ ځانونه له شرابو څښلو را وګرځول، موږ ځانونه له شرابو څښلو را وګرځول»، ټولو اصحابو د کورونو په کوڅو کې شراب تویې کړل، د شرابو لوښي یې مات کړل او نور یې ځانونه ځنې را وګرځول.

همدا راز حضرت بي بي عائشه رضي الله عنها وایي: الله تعالی دې په لومړنیو مهاجراتو ښځو رحم وکړي، کله چې الله تعالی دا آیت نازل کړ: [النور: ۳۱] ژباړه: (ښځې دې په خپلو ګریوانو پوړني واچوي.) نو دوی خپل پوړني دوه ځایه کړل او په هغو یې خپل مخونه او بدنونه پټ کړل [بخاري]

موږ ولیدل چې د اطاعت د نشتون او خپلسریو له امله په څو محدودو لسیزو کې په لسګونو واکمنان پرلپسې پر همدې جغرافیه را وپرځیدل، چې بیه یې بیا ټول ملت پرې کړه؛ هغوی چې د پردیو پر اوړو او څو ورځني نمایشي سلطنت یې د ملي ګټو پرځای د شخصي او بهرنیو بادارانو ګټو ته لومړیتوب ورکاوه؛ نن په خورا سخت حالت کې له هیواد او ولسه لرې منفوره زندګي تیروي ؛ الله ج دې موږ د دوی له برخلیکه وژغوري .آمین

# افغان اعلانات

**اطلاعیه مفقودی**

یک جلد پاسپورت تجارتی به اسم ذبیح الله فرزند حاجی غلام صدیق مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۶۴۹

**اطلاعیه فروش موتر**

اسامی محترم شرکت خورشید لمتید یک عراده موتر پلیت ۹۵۸۸۴- ۲ ش کابل نوع تیوتا کرولا سالون جاپانی خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای صباون فرزند امر الله بفروش رسانیده است.

بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۹۶۵۲

**اطلاعیه فروش موتر**

اسامی محترم توفیق فرزند ظهور یک عراده موتر پلیت ۹۲۸۸۹-ل کابل نوع بنز اکتروز جرمنی خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای بازمحمد فرزند حاجی ولی محمد بفروش رسانیده است.

بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۹۶۲۸

**اطلاعیه فروش موتر**

اسامی محترم بشیر احمد فرزند غلام ربانی یک عراده موتر پلیت ۷۹۷۷۲ ل کابل نوع بنز جرمنی خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای بازمحمد فرزند حاجی ولی محمد بفروش رسانیده است.

بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۹۶۲۷

**اطلاعیه فروش موتر**

اسامی محترم حاجی رحمت الله فرزند حاجی چراغ الدین یک عراده موتر پلیت ۲۲۵۹۹ ل کابل نوع بنز جرمنی خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای بازمحمد فرزند حاجی ولی محمد بفروش رسانیده است.

بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۹۶۲۳

**اطلاعیه فروش موتر**

اسامی محترم هدایت الله فرزند وفی الله یک عراده موتر پلیت ۷۱۵۶۷- ل کابل نوع بنز لاری جرمنی خویش را بعد از طی مراحل قانونی خرید و فروش بالای بازمحمد فرزند حاجی ولی محمد بفروش رسانیده است.

بناء اشخاص ادارات و موسساتی که با عراده فوق کدام معامله داشته باشند الی مدت سه یوم به مدیریت ترافیک کابل اطلاع دهند. ۹۶۲۰

**اطلاعیه به کرایه دهی**

شرکت افسوتر ساحه اطاق جوار هنگر نمبر ۳ به مساحت ۱۱۷ متر مربع ملکیت آمریت عمومی تخنیکی نمبر ۱ واقع سرای شمالی را از طریق آفرگشایی ۳ ساله به کرایه میدهد.

اشخاص حقیقی و حکمی که خواهش به کرایه گرفتن آنرا داشته باشند درخواستی های خویش را بعد از نشر اعلان الی مدت ۲۱ یوم به آمریت عمومی مرکز تخنیکی نمبر ۱ واقع سرای شمالی سپرده خود و یا نماینده قانونی شان به روز معینه ساعت ده بجه قبل از ظهر در جلسه آفرگشایی اشتراک نموده و شرطنامه را ملاحظه تامینات نقدا اخذ میگردد.۹۶۲۶

**اطلاعیه مفقودی**

یک جلد جواز سیر موتر پلیت نمبر ۵۹۱۴ ل کابل به اسم شرکت ضیا نجیب لمتید مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۶۳۷

**اطلاعیه مفقودی**

یک قطعه کارت هویت وکالت دفاع شماره ۵۳۶۰ مورخ ۱۴۴۶/۲/۱۷مربوط محترم سردار اخلاقی زاده فرزند سرور که شماره متذکره نیز درج آن میباشد مفقود گردیده از اعتبار ساقط میباشند. ۹۶۵۰

اطلاعیه مفقودی

یک قطعه ورق گمرکی دارای نمبر ۹۴۹۳ به اسم توریالی محمدی فرزند سخی محمد مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۶۴۰

**اطلاعیه مفقودی**

یک قطعه قباله شرعی نمبر ۳۰۲۴/۶۵۳ مورخ ۱۳۴۰/۱/۲۰ مرتبه محکمه چهار دهی کابل به اسم عبدالله فرزند محمد اکرم ولدیت محمد یونس مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۶۴۳

**اطلاعیه مفقودی**

یک قطعه وراثت خط شرعی نمبر ۲۰۴/۱۷۵۶ مورخ ۱۳۶۷/۷/۱۲ مرتبه محکمه ناحیه ۱۱ کابل به اسم غلام حسین فرزند غلام جیلانی ولدیت مالا جلندر مفقود گردیده از اعتبار ساقط می باشد.۹۶۴۱

---

**بلخ کې د سوداګریز ...**

له لوري د وړاندې شوې طرحې په اړه ټاکل شوې کمېټې ته دنده وسپارل شوه، څو د یادې طرحې په اړه له وړاندې کوونکي شرکت سره تخنیکي بحثونه ترسره او خپل راپور د پانګوني بین‌الوزارتي کمېټې ته په ټاکلې نېټه وړاندې کړي.

**رسیدگی به دوسیه های ...**

طی این دو هفته، به ۳۱۸ دوسیه حقوقی و ۱۵۲ دوسیه جزایی در محاکم ولایت تخار رسیدگی شده است و ۱۳۸ وثیقه مختلف نیز از سوی این محاکم اجرا شده است.

**د بیرغ کارولو او ساتلو ...**

او جهادي برم او عظمت ترجماني کوي.))عزیزي زیاته کړې ده: (( لازمه ده چې بیرغ په هغو ځایونو کې نصب او وکارول شي ،چې ساتنې او تقدس ته یې پاملرنه کېږي او درناوي ته یې رسیدګي کیدلای شي. نو همدغو ملحوظاتو ته د پاملرنې په خاطر اړینه ده ،چې د هېواد په کچه عامه پوهاوي ترسره شي))په ناسته کې د کمېټې د غړیو له رغندو نظرونو وروسته، یوې کاري کمېټې ته دنده سپارل شوې ،چې راتلونکې ناستې ته د بیرغ او کلمه طیبه د احترام او استعمال او هم پر بدیلو لارو چارو باندې په دقیق ډول غور او تصمیم ونیول شي.

**۳۴ ولایتونو کې د ځنباک ...**

ترڅو وکولای شو یو پیاوړې اقتصادي بنسټ ولرو او د هېواد اوبه په غوره ډول مدیریت کړو.))اقلیمي بدلونونه، چې د افغانستان په ډېرو سیمو کې د وچکالیو او ورانوونکو سیلابونو لامل شوي، یوه خورا جدي ننګونه ګڼل کیږي ،چې د کرنې سکتور یې زیانمن کړي او ترڅمکې لاندې اوبو کچه یې د پام وړ راټیټه کړې ده.

**ډنمارک له افغانستان ...**

د ډنمارک د مرستې ستاینه وکړه.د افغانستان د اماني صندوق په وینا، د نړیوالو مرستندویانو دوامداره ملاتړ د دوامداره او اقلیم ضد حل لارو له لارې د افغان اتباعو د پیاوړتیا په برخه کې مهم رول لوبوي.له دې وړاندې د جاپان نړیوالې همکارۍ ادارې (JICA) هم اعلان وکړ، چې د ملګرو ملتونو د کډوالو ادارې سره یې د هېواد په ۱۳ ولایتونو کې د راستنېدونکو او داخلي بې‌ځایه شویو خلکو د ژوند ښه کولو لپاره یو مالي تړون لاسلیک کړي دي.له دې وړاندې د سرپرست حکومت د کډوالو او راستنېدونکو چارو وزارت اعلان وکړ چې د ډنمارک د کډوالو خدماتو سره یې د بېرته راستنېدونکو کډوالو د ملاتړ لپاره د څه باندې یو میلیون او ۵۶ زره ډالرو ارزښت لرونکي تړون لاسلیک کړي دي.

**فراه کې د ۲۷ اجباري ...**

کسانو څخه بېرته ورکړې دی. نوموړي ټینګار کړی، چې چا ته د اجباري نکاح او په بدو کې د ښځو د ورکولو اجازه نه ورکول کېږي او له سرغړوونکو سره قانوني چلند کېږي.ده زیاته کړه، چې اسلام او شریعت دا حق نه ورکوي، چې څوک دې ښځه په زور نکاح یا په بدو کې ورکړي. صمیم له ولسي خلکو د همکارۍ غوښتنه وکړه او زیاته یې کړه، چې د دې ریاست محتسبین د فراه په مرکز او ولسوالیو کې د منبرونو له لارې د اجباري نکاحو،د منکراتو د مخنیوي او د معروفاتو د لوړولو په موخه لارښووني کوي.د یادونې وړ ده، چې په تېرو ۳ نیمو کلونو کې د امر بالمعروف او نهي عن المنکر او شکایتونو اورېدلو وزارت په هڅو د څه باندې ۶ زره ښځو د اجباري نکاح مخنیوي شوی دی.

باختر

**د کندهار موزیم کې ...**

د ځپاند په وینا، سږ کال ۱۳ بېلابېل فلزي اثار او ۴۱ تاریخي کتابونه، چې بهر ته قاچاق کېدل، د احمدشاه بابا هوایي ډګر کې د امنیتي مسئولینو له خوا نیول شوي دي.

هغه وویل، د افغانستان د فرهنګي میراثونو د ساتنې او څېړنو (چکري) مؤسسې په مالي ملاتړ د موزیم د ودانۍ د بیا رغونې چارې ۸۰ سلنه بشپړې شوې او د معیاري ویټرینونو له جوړولو وروسته به تاریخي اثار ننداري ته وړاندې شي.د ځپاند د معلوماتو له مخې، په کندهار کې لومړنی موزیم د احمدشاه بابا د واکمنۍ پر مهال د (( بیت الاشراف )) په نوم جوړ شوي و، او اوسني موزیم په ۱۳۱۱ هـ.ل کال کې د وزیر محمد ګل خان مهمند له خوا جوړ شوي، چې په سالون کې یې تاریخي اثار ځاي پر ځاي شوي دي.د یادونې وړ ده، چې د کندهار په موزیم کې د قلمي نسخو، ټوپکو، سکو، لوښو، کتابونو او ګڼو نورو تاریخي اثارو ټولګه موجوده ده.

**کونړ کې د بولډرږوال ...**

قرارداد او چارې یې دا مهال عملاً جریان لري.د یادو پروژو په بشپړېدو سره به د کونړ-نورستان عمومي سړک لوري ته د سیند غاړه مستحکمه او د یاد سړک له تخریب څخه به مخنیوي وشي.

**تخار کې امنیتي ځواکونو ...**

چې د ګازو په یو ټانکر کې په مهارت ځای په ځای شوي وو.نوموړي زیاته کړې، په دې تړاو دوه تنه نیول شوي دي، چې له لومړنیو څېړنو وروسته به عدلي او قضایي ارګانونو ته وسپارل شي.د یادونې وړ ده، چې د اسلامي امارت له بیا حاکمیت را وروسته د نشه یي توکو دکرکیلې او قاچاق پر وړاندې بې ساري جدي مبارزه پیل شوه، چې اوس هېواد کې د نشه یي توکو کرکیله، پیر او پلور له ټولو ټیټې کچې ته رسېدلې دي.

**د خوست د شیخ زاید ...**

د رئیس، د تدریسي روغتون د سرطبیب او روغتیایي کارکوونکو په حضور کې د یادې موسسې د مسئولینو له خوا تدریسي روغتون ته سپارل شوي دي.هاتف همدا راز ویلي چې د شیخ زاید پوهنتون مسئولین د یادې موسسې له مرستې مننه کوي او په راتلونکې کې د لا نورو طبي همکاریو هیله څرګندوي.

**د افغانستان او ایران ...**

د ستونزو د حل غوښتنه کوي. بله خوا بیا اقتصادي کارپوهان د افغانستان او ایران ترمنځ د صادراتو او وارداتو زیاتوالي ګټور بولي او وایي، چې له ایران او ګاونډیو هېوادونو څخه د سوداګریزو توکو واردات په بازارونو کې پر بیو هم اغیزه لرونکي دي.دا په داسې حال کې ده، چې د ایران د دوغارون ګمرک مدیر ویلي ،چې د روان کال په لسو میاشتو کې د تېر کال په ورته موده کې د سوداګریزو او ټرانزیټي توکو د راکړې ورکړې کچه ۷۰ سلنه زیاته شوې ده.

**عرب مشرانو د غزې ...**

د مصر په پلازمېنه قاهره کې جوړه شوې وه، تصویب شوه. دغه طرحه چې درې پړاوونه لري لومړي پړاو یې شپږ میاشتې دوام کوي، چې پکې د وېجاړیو پاکول، د موقتي کورونو جوړول او د نیمه‌ویجاړو کورونو بیارغونه شامله ده. دویم پړاو یې چې دوه کاله دوام کوي، بیا هم پکې د ویجاړیو پاکول، د اوبو او برښنا شبکو جوړول او د نورو استوګنیزو واحدونو جوړول شامل دي. دریېمه مرحله یې، چې دوه‌نیم کاله دوام کوي، پکې د غزې د ټولو اوسېدونکو لپاره د کورونو جوړول، د صنعتي زون د لومړۍ فاز جوړول، د سوداګریزو بندرونو جوړول، د هوايي ډګر جوړول او نور عامه خدمتونه شامل دي. په دې طرحه کې د غزې د بیارغونې لګښت ۵۳ میلیارده ډالره اټکل شوی.

**راتلونکو ۷ کلونو کې ...**

تر څو یې په روزنه کې ځنډ رانه شي. په پلان کې ده چې تر ۱۴۱۰ کال پورې به په ټول هېواد کې دوه سوه میلیونه نیالګي د زرغونتیا او پاکې هوا په موخه کېنول شي، چې د ساتنې لپاره به یې کوټلي ګامونه واخیستل شي او ساتنه به یې کېږي. په ورته مهال د کابل ښاروالۍ د زرغونتیا ریاست عمومي رئیس عبدالوکیل متوکل وویل: په پلازمېنې کابل کې له لندمهالو او اوږد مهالو پلانونو سره سم نیالګي کېنول کېږي. د کابل ښاروالي د ښار د زرغونتیا، ساتنې ، ښاریانو ته د پاکو اوبو رسونې او رغونې په فکر کې ده او ونو ته د دوی د ځنباک اوبه نه ور کول کېږي. د اسلامي امارت په راتګ سره کابل کې دوه شنې خونې وې چې اوس د دربوو کلونو په تېرېدو سره ۴۸ خونې دي. تېر کال دوه میلیونه نیالګي د کابل په بېلا بېلو سیمو کې کېنول شول چې اوس یې نتیجه معلومه او ښکاره ده.د متوکل په وینا: وخت پر وخت د نیالګیو کېنولو برنامې عملي او څارنه یې کېږي، نو له کابل ښاریانو غواړم چې ټول د ځان او راتلونکې نسل لپاره یو یو نیالګی کېنوي. سږ کال په کابل کې یو میلیون نیالګي په نظر کې نیول شوي چې له جملې یې ۶ لکه یې نیالولو ته چمتو او نور به هم راتلونکو ورځو کې کېنولو ته چمتو شي. ونې د طوفان مخنیوی، د بارانونو جذب او د اکسیجن په تولید کې رغنده رول لري تر څو د مسئولیت له مخې یو یو نیالګی کېنوو.د تې ایل او موسسې مرستیال انجنیر عبدالرحیم خرم وویل: نړۍ د اقلیمي بدلون له ګواښ سره مخ ده چې په وروستیو کلونو کې زموږ هېواد هم ور سره مخامخ شوی دی، د اغېزو د کمولو لپاره اړینه ده چې نیالګي زیات کېنول شي او ښارې دښتې زرغوني شي. دا یوازې د دولت دنده نه ده، بلکې ټول هېوادوال په دې ګډ مسئولیت کې برخوال دي تر څو لاس په کار شي او د پاک چاپېریال په لرلو کې همکار واوسي. سږ کال به په کابل او په نورو نولسو ولایتونو کې د هوا حالاتو ته په کتلو سره ۱۴۵ زره مثمر او غیر مثمیر نیالګي کېنول شي. همداشان د کرنې، اوبو لګولو او مالدارۍ وزارت مرستیال مولوي صدراعظم عثماني وویل: په دربوو کلونو کې په ۲۲ ولایتونو کې پر ۲۰ زره هکتاره ځمکه باندې ځنګلونه جوړ شوي دي، پر درې زره هکتاره ځمکه باندې یې نیالګي کېنول شوي دي. سږ کال به په ټولو ولایتونو کې ۱۶ میلیونه نیالګي کېنول شي، نو نیالګي کېنول د چاپېریال ساتنه ده چې په کې ټولو ژوندیو موجوداتو ته ګټه رسېږي. دې سره همماله د اوبو او انرژۍ وزارت ارشد سلاکار ډاکټر فاروق اعظم وویل: په یو نیالګي کېنولو سره دا د خپل ځان خدمت کول دي، ځکه چې ونه له هوا څخه زهرجن ګازات اخلي او پاکه هوا ژوندیو موجوداتو ته رسوي، پر روغتیا سر بېره په بېلا بېلو برخو کې مهم رول لوبوي، نو پر ټولو هېوادوالو غږ کوم چې په دې برخه کې دولت سره ځنګ په ځنګ ودرېږي او د نیالګیو په کېنولو کې همکار واوسي.په افغانستان کې د یوناما د سیاسي استازولۍ استازي ایلن فیلس وویل: چاپېریال هغه وخت پاک ساتل کېږي چې د ټولنې وګړي نیالګي کېنوي، موږ هڅه کوو چې ستونزو ته رسېدنه وکړو او افغاني چاپېریال له زیان څخه وساتو، ځکه چې موږ په خپله د افغانستان ویجاړ چاپېریال لیدلی دی، افغانان ځپل شوي دي او ساتنه یې د ټولو ګډ مسئولیت دی او ګډ اقدام په دې برخه کې اخیستل په کار دي. د ملګرو ملتونو سازمان هڅه کوي چې چاپېریال ساتنه له سیاسي موضوعاتو لرې وساتي او ټولو ته په ګډه خدمات وړاندې شي. موږ له خلکو سره د چاپېریال ساتنې په اړوند خبرې کړې تر څو په چاپېریال ساتنه کې د خلکو ملاتړ وکړي او یوناما له افغانانو سره په ګډه هڅه کوي چې د چاپېریال ساتنې لپاره خوندي او سالمه ټولنه ولري. زیارمل هوتک

**د ننګرهار وادي کرنیز ...**

په لرلو سره د انسان هډوکي پیاوړي کوي او همداراز له ذهني فشار څخه د خلاصون لپاره له ټولو غوره تګلاره دا ده چې د ورځې پیل په یو ګیلاس شېدو سره وشي.نوموړي زیاته کړه، چې د شیدو زیات استعمال کولي شي انسان له عصبي ناروغیو څخه وژغوري، شیدې د مختلفو ناروغیو د مخنیوي لپاره اغیزناک درمل دي او هم د انسان د بدن د ودې اونمو سبب ګرځي، د میکروبونو په مقابل کې مقاومت کوي او د ناروغیو مخه نیسي، د اسهال مخنیوي کوي او همدارنګه د زخم په ژر رغېدو او د غاښونو د خرابېدو په مخنیوي کې مرسته کوي، همداراز شیدې د خوب په ښه والي، د عضلاتو د قوت، د سږو ناروغۍ د مخنیوي او د سرطان ناروغۍ په قابو کولو کې مرسته کولي شي. هغه وایي، چې د ژر زوړوالي مخنیوي کوي، انسان ځوان ساتي، ځکه پوستکي نرم او تازه کوي، شیدې د حافظې د قوت، د وینې د لوړ فشار د ښکته کولو او د چاغښت په مخنیوي کې ګټه لري. همداشان یو تن هېوادوال محمد نبي وایي، چې اسلامي امارت دې د کرنې او مالداري برخې ته ځانګړې پاملرنه وکړي او په ټولو ولایتونو کې د غوا ګانو فارمونه جوړ کړي، ځکه چې سیمه ییزو خلکو ته د کار فرصتونه برابرېږي او د هېوادوالو اقتصاد پیاوړي کېږي.

سمیع الله مومند

**بغلان کې د لسګونو ...**

ډول ویجاړ شوي یا ترمیم او بیارغوني ته اړتیا لري.

هغه وویل چې د ښوونځیو ترمیم او بیارغونه د بغلان د پوهنې ریاست له لومړیتوبونو څخه ده او ویې ویل: ((د پورته ذکر شویو ښوونځیو ترمیم او بیارغونه به د نوي تعلیمي کال تر پیل پورې بشپړه شي.))

Hewad Daily

دورځپاڼو رئیس : انجنیر عُزیر «بریالی»
موبایل : ۰۲۰۲۵۲۶۳۴۰
آمر او مسئول مدیر : عطاء الله مبارز
موبایل: ۰۷۷۴۳۱۸۹۰۲
مسئول سکرتر: شېرمحمدنظري
موبایل: ۰۷۸۸۵۰۳۳۷۱

پته: اتمه ناحیه، د المپیک څلورلارې، د حضوري چمن ختیځ، کابل افغانستان
داړیکو شمېره: س ۲۵۲۶۳۴۰ - ۰۲۰
E-mail :info@hewaddaily.com
E-mail : hewad1948@gmail.com
دهیوادورځپاڼې انټرنېټي پاڼې دلاندې ویب سایټ له لارې هم کتلی شئ
ویب سایت: www.hewaddaily.com
دشکایاتو اوتوزیع څانګه:
۰۲۰۲۳۱۲۵۰۹-۰۷۶۶۰۴۴۹۶۶-۰۷۳۶۰۶۰۷۳

پنجشنبه د رمضان المبارک ٦ مه ١٤٤٦ ق کال د ١٤٠٣ ل کال د کب ١٦ مه ٢٢ مه د 2025 م کال د مارچ 6 مه

# د افغانستان او ایران ترمنځ د څه باندې ۲ ملیاردو ډالرو په ارزښت راکړه ورکړه شوې

د صنعت او سوداګرۍ وزارت وايي: تېرو لسو میاشتو کې ایران ته له افغانستان څخه د ۴۵ میلیونه ډالرو په ارزښت سوداګریز توکي صادر شوي دي.د دې وزارت ویاند اخوندزاده عبدالسلام جواد وايي، له ایران څخه افغانستان ته واردات د دوه میلیارده او ۶۹۲ میلیونو ډالرو په ارزښت شوي دي.له بلې خوا د سوداګرۍ او پانګونې خونه وايي: د افغانستان او ایران ترمنځ سوداګریزې او اقتصادي اړیکې زیاتې شوي دي.یاده خونه زیاتوي: ایران د افغانستان لوی سوداګریز شریک دی، دوی دغه راز د ترانزیټي لویو لارو... ۷مخ

# عرب مشرانو د غزې د بیارغونې لپاره د مصر طرحه تصویب کړې

د مصر ولسمشر عبدالفتاح السیسي ویلي، چې د غزې د تصویب شوې ده. د الجزیرې د راپور له‌مخې، دا طرحه د عرب بیارغونې لپاره د دې هېواد طرحه د عرب مشرانو له لوري مشرانو په بېړنۍ غونډه کې چې ورمه ورځ... ۷مخ

# د چاپېریال ساتنې ملي اداره:

# راتلونکو ۷ کلونو کې به په هېواد کې ۲۰۰ میلیونه نیالګي کېنوو

د افغانستان اسلامي امارت د نیالګیو کېنولو ملي برنامې په لړ کې د نوي ۱۴۰۴ کال لپاره د نیالګیو کېنولو په پار د چاپېریال ساتنې ملي ادارې، کابل ښاروالۍ او تي ایل اوو موسسې سره په ګډه همکارۍ د زرغون میراث تر نوم لاندې د ونو کېنولو ملي کمپاین پیل کړ چې په دې اړه راټولې شوې غونډې ته په وینا کې د چاپېریال ساتنې ملي ادارې مسلکي مرستیال ډاکټر زین العابدین عابد وویل: د دې خېروني موخه واحد غږ دی تر څو په یو نیالګي کېنولو سره د افغانستان په زرغونتیا کې ټول هېوادوال برخوال واوسو. د ابادۍ په موخه دې ټول هېوادوال پنځه پنځه نیالګي کېنوي، چې د زرغونتیا او پاکې هوا څخه برخمن هېواد ولرو، د اقلیمي بدلون په کمښت کې مرسته کوي، انسان ته روحي او روغتیایي ګټه لري، نو له هېواد سره مو مینه په آبادۍ که برخه اخیستل دي چې پاک چاپېریال رامنځته کول خپل مسئولیت وګڼو او له ملي تاسیساتو څخه ساتنه وکړو. د عابد په وینا: د نیالګیو په ساتنه کې، کورنۍ، دوکانداران او عام وګړي په ګډه برخه واخلئ ... ۷مخ

# ارزګان کې راستنېدونکو کډوالو ته د استوګنځیو جوړول پیل شول

د کډوالو او راستنیدونکو چارو وزارت اعلان وکړ، چې د ارزګان ولایت په مرکز ترینکوټ ښار کې د ۱۸۲۶ جریبه ځمکې په ساحه کې د استوګنځیو د جوړولو لپاره لومړنې کارونه پیل شوي دي. د کډوالو او راستنیدونکو چارو وزارت مطبوعاتي دفتر په یوه خبرپاڼه کې اعلان وکړ ،چې پورته ذکر شوې ځمکې په ۱۰۸۳ نقطو کې پېژندل شوي او بیا به د کورونو جوړولو لپاره راستنیدونکو ته وسپارل شي.دا باید په یاد ولرو ،چې څه موده وړاندې د اسلامي امارت د مشرتابه په امر د افغانستان په مختلفو ولایتونو کې له مختلفو هیوادونو څخه د راستنیدونکو کډوالو لپاره د استوګنځایونو د جوړولو پلان پیل شو. د دې کډوالو له ټولو لویه شمېره له پاکستان او ایران څخه افغانستان ته راستانه شوي دي.

# د ننګرهار وادي کرنیز شرکت هره ورځ سلګونه لیتره شیدې بازار ته وړاندې کوي

افغانستان چې یو کرنیز هېواد دي ډېر وګړي یې دڅارویو محصولاتو ته لاسرسي لري.د هېواد په کلیو کې د ډېرو خلکو ورځني خواړه همدا کورنۍ محصولات جوړوي.د ننګرهار وادي کرنیز شرکت د مسئولینو په وینا، هر ورځ ۳۰۰ لیتره شیدې بازار ته وړاندې کوي د ننګرهار وادي کرنیز امارتي شرکت ویاند سید همایون غریب‌مل هېواد ورځپاڼې ته ویلي، چې د نوموړي شرکت د مالدارۍ فارم کې ۳۱۱ څاروي شتون لري، چې له جملې یې ۴۶ غواګانې دي.ښاغلي غریب‌مل زیاته کړه، چې د مالدارۍ فارم د ننګرهار وادي کرنیز امارتي شرکت له خوا هدې فارم کې پر ۱۷ جریبه ځمکه جوړ دي، چې د غواګانو ، خوسیانو ، د غوښنو څارویو د تغذیې، روغتیا، ساتنې او روزنې برخه کې مهم ګامونه پورته کوي، ترڅو د شیدو تولید او عرضې ته وده ورکړي او د هېواد د خوراکي موادو د اړتیاوو پوره کولو کې خپله ونډه واخلي. بل لورته د شیدو د ګټو په اړه پروفیسور ډاکټر محمد فیض صافي وايي، چې شیدې د زیاتو ویټامینونو درلودونکې دي او د ویټامین اې او ډې تر څنګ د کلسیمو او پروټینو مهمه سرچینه بلل کېږي.ښاغلي صافي وايي، شیدې د زیاته اندازه کلسیمو... ۷مخ

# د رمضان جام؛ خوست کې د ۱۶ لوبډلو ترمنځ د والیبال سیالۍ پیل شوې

د خوست ولایت د بدني روزنې او ورزش آمریت مسئولین وايي چې د والیبال فدراسیون ترچتر لاندې د ۱۶ لوبډلو ترمنځ د رمضان جام سیالۍ پیل شوې دي.

سرچینې باختر اطلاعاتي اژانس ته ویلي، چې په یادو سیالیو کې ۱۶ لوبډلې په ۴ ګروپونو وېشل شوې، چې د روژې مبارکې میاشتې ترپایه به یادې سیالۍ رواني وي.

د رمضان جام سیالیو لومړۍ لوبه د یعقوبیو صبریو منتخب او دلپوریو لوبډلې ترمنځ ترسره شوه، چې لوبه د ۱/۲ میدانونو په ګټلو سره د دلپوریو لوبډلې په ګټه پای ته ورسېده.

د یادونې وړ ده، چې د والیبال یادې سیالۍ په نوي جوړ شوي شیخ زاید جمنازیوم کې هره شپه د تراویحو له لمانځه وروسته دوه لوبې ترسره کېږي.

# بغلان کې د لسګونو ښوونځیو ترمیمول او بیارغونه پیل شوه

په بغلان کې د لسګونو ښوونځیو د ترمیم او بیارغونې پروسه د نږدې پنځو میلیونو افغانیو په لګښت پیل شوې ده.د بغلان د پوهنې ریاست د انجنیرۍ د عمومي مدیریت غړي انجنیر فضل الدین باختر آژانس ته ویلی چې د «کورني نوښت او پراختیا» موسسې په همکارۍ د دغه ولایت په پلخمري او مرکزي بغلان ولسوالۍ کې د ۲۹ ښوونځیو بیارغونه او ترمیم پیل شوي دي. هغه زیاته کړه چې د دې ښوونځیو ډېر یې د پخواني رژیم د جګړو په پایله کې په جزوي... ۷مخ

# د روغتیا نړیوال سازمان: افغانستان کې مو له ۳۱ روغتیایي مرکزونو ملاتړ کړی

د روغتیا نړیوال سازمان اعلان کړي چې د روان زیږدیز کال په جنورۍ میاشت کې یې د افغانستان په ۲۰ ولایتونو کې له ۱۳۱ روغتیایي مرکزونو ملاتړ کړي او په ۷ ولایتونو کې یې ۹ روغتونونو ته وده ورکړې ده.

دغې ادارې په یوه خبرپاڼه کې زیاته کړې، چې په ۱۲ ولایتونو کې یې د نشه یي توکو د درملنې له ۱۲ مرکزونو او ۲ د افیوني موادو د بدیلې درملنې له مرکزونو ملاتړ کړي او له ۶ نادولتي بنسټونو سره یې د درملنې خدمتونو د وړاندې کولو په برخه کې همکاري کړې ده.

# نورستان کې ۱۱ زره هکتاره څرځایونه بیارغول شوي دي

د نورستان والي قاري زین العابدین ویلي، دکرنې اوبو لګولو او مالدارۍ ریاست له لوري د یاد ولایت بېلابېلو سیمو او ولسوالیو کې ۱۱زره هکتاره څر ځایونه چې د واورو او سېلابونو له کبله له منځه تللي وو بیرته رغول شوي دي.ښاغلي زین العابدین ویلي، د مالچرونو د بډاینې په موخه یې ۹ متریک ټنه للمي رشقه هم کرلې. نوموړي ویلي، د دې ترڅنګ یې د اوبو حوزونه جوړ کړي او ۲۵زره مالدارانو ته یې مرکز او ولسوالیو کې حیواني خوراکي توکي هم وېشلي دي.د یادونې وړ ده، چې د نورستان د ولایتي ادارې او کرنې ریاست په ګډو هڅو د مالچرو او ځنګلونو ساتنې تر څنګ ۲۵۰۰ هکتاره نور ځنګلونه هم رغول شوي دي.

# د کاناډا لومړي وزیر:

# د ټرمپ له لوري د سوداګریزو تعرفو لوړول لېونتوب دی

د کاناډا لومړي وزیر جسټن ټروډو د امریکا د ولسمشر ډونالډ ټرمپ له لوري پر سوداګریزو توکو د تعرفو لوړولو ته په غبرګون کې دغه اقدام لېونتوب او سوداګریزه جګړه بللې ده.ټروډو په یوه خبري کنفرانس کې ویلي، کاناډا به هم د امریکا په وارداتي توکو ۲۵سلنه تعرفه لوړه کړي.په ورته مهال د مکسیکو ولسمشر هم د تعرفو لوړولو ته په غبرګون کې ویلي، ډېر ژر به امریکا ته متقابل ځواب ورکړي،خو د امریکا ولسمشر ډونالډ ټرمپ بیا د کاناډا د لومړي وزیر خبرو ته په غبرګون کې ویلي، د کاناډا والي ته ووایاست ،کله چې پر امریکا ځوابي تعرفې وضع کوي، زموږ متقابلې تعرفې به نورې هم لوړې شي.